# وخت لکه سره زر

د وخت د ارزښت او په ګټورو کارونو باندې د هغه د بوختولو، په بې ځایه نه تېرولو او د عالمانو او پوهانو د ژوند لیکونو په رڼا کې د هغه د تنظیمولو او سپمولو د ګټورو لارو چارو ټولګه




لیکواله: ډیوه همت لور

بیا کتونکی: استاذ عبدالمالک همت


# وخت لکه سره زر

# وخت لکه سره زر

د وخت د ارزښت او په ګټورو کارونو باندې د هغه د بوختولو، په
بې ځایه نه تېرولو او د عالمانو او پوهانو د ژوند لیکونو
په رڼا کې د هغه د تنظیمولو او سپمولو
د ګټورو لارو چارو
ټولګه


لیکواله:
ډېوه همت لور

بیا کتونکی:
استاذ عبدالمالک همت



خپروونکې:
د علمي خپرونو ټولنه، کابل، افغانستان
د خپرونو لړ: (۱)
د خپرېدو کال: ۱۳۹۶ لمریز

## د کتاب پېژندنه

**د کتاب موضوع:**

**د وخت ارزښت**

**د کتاب نوم:**

# وخت لکه سره زر


لیکواله:.........................ډېوه همت لور

بیاکتونکی:.................. استاد عبدالمالک همت

کمپوز او ډیزاین :..................... د لیکوالي له خوا

خپروونکی :................. د علمي څېړنو ټولنه ، کابل

د چاپ نېټه :................... د ۱۳۹۷ ل. کال

کمپیوټر چاري :......................ننګیالی همت

د مخونو شمېره : :............................. (۹۴)

د مخونو کچه :.................. ۱۴ په ۲۱ سانتیو کي

چاپځای:.......................................کابل

چاپشمېر:...................................زر ټوکه

د کتاب بیه:...........................(      ) افغانۍ




بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَالْعَصْرِ (١) إِنَّ الْإِنْسَانَ لَفِي خُسْرٍ (٢) إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَتَوَاصَوْا بِالْحَقِّ وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ (٣)

القرآن الكريم

**ژباړه:**

**او د مازديګر په وخت قسم، چې انسانان ټول په لوی تاوان او هلاکت کې دي، خو نه هغه کسان چې پر الله او د هغه پر پيغمبر يې ايمان راوړی دی او ښې کړني تر سره کوي او يو بل ته په حق او پر حق باندي په زغم او صبر کولو سره نصيحت او سپارښتنه کوي(نو په دغو ستاينو ستايلي خلک د نړۍ او آخرت په ژوندانه کې ژغورلي دي).**

# لیکلړ




الْحَمد لله رب الْعَالمين وَالصَّلَاة وَالسَّلَام على سيدنَا مُحَمَّد وَ على آله وَصَحبه أَجْمَعِينَ أَمَّا بَعْدُ:

**وخت د لوی څښتن جل جلاله د بې شمېرو نعمتونو څخه يو ارزښتناک او لوی نعمت دی چي لوی څښتن هر انسان ته ورکړی دی. خو دا په انسانانو پوري اړه لري چي څوک د دې ستر نعمت په ارزښت پوهيږي او په سمه توګه ګټه ځني اخلي او څوک يې هسي عبث تېروي.**

**د وخت په اړه په بېلو بېلو ژبو کي کتابونه ليکل سوي دي، چي په هغو کي دوه کتابونه ډېر نامتو دي او زما هم ډېر خوښ سوي دي. دغه کتابونه يو په عربي ژبه دی چي اروا ښاد شيخ عبدالفتاح ابو غدة (۱۳۳۵ – ۱۴۱۷هـ) ليکلی دی او" قيمة الزمن عند العلماء" نوميږي او بل په اردو ژبه دي چي ابن الحسن عباسي ليکلی دی او" متاع وقت اور کاروان علم" نوميږي. د دې دوو کتابونو په مطالعه کولو سره او په خپله ژبه کي د دې ډول کتاب د کمښت تر احساسولو وروسته دې ته لېواله سوم چي په پښتو ژبه هم له دغو او نورو بېلا بېلو کتابونو څخه په ګټه اخيستنه يوه کوچنۍ ټولګه چمتو کړم.**

نو لاس په کار سوم او بالاخره مې د لوی څښتن په فضل او توفیق وکولای سوای چې تاسو ته دا کوچنۍ ټولګه وړاندې کړم.

هیله لرم چې ددې ټولګې په چمتو کولو کې لږ تېروتنې راڅخه سوې وي، خپلو درنو هیوادوالو ته مې یو څه خدمت کړی وي او زما دا وړوکی چوپړ د لوی څښتن په ستر او سپېڅلي دربار کې د قبلولو وړ وګرځي آمین.

ستاسي خور، ډېوه همت لور، همت ټاټوبی،
کابل، د ۱۳۹۵ لمریز کال د مرغومی ۱۷مه

# دوخت ارزښت د اسلام له نظره

د اسلام سپېڅلی دین هغه یوازنی منظم او د مهال سره سم وېشل سوی دین دی، چي وخت ته يې د نورو سترو نعمتونو تر څنګ ډېر ارزښت او اهمیت ورکړی دی . لوی څښتن د قرآن کریم په ډېرو ځایونو کي په بېلا بېلو آیتونو کي، په وخت او زمان باندي په قسم اخیستو سره دا ښوولې ده چي وخت ډېر ارزښت لري او باید بې ځایه تېر نه سي او په دې اړه يې فرمایلي دي:

﴿ وَٱلۡعَصۡرِ ۝١ إِنَّ ٱلۡإِنسَٰنَ لَفِي خُسۡرٍ ۝٢ ﴾[ العصر:۱۰۳/۱-۲]

ژباړه: او د مازدیګر په وخت قسم، چي انسانان ټول په لوی تاوان او هلاکت کي دي.

بل ځای يې فرمایلي دي:

﴿ وَٱلَّيۡلِ إِذَا يَغۡشَىٰ ۝١ وَٱلنَّهَارِ إِذَا تَجَلَّىٰ ۝٢ ﴾[ اليل:۹۲/۱-۲]

ژباړه: قسم په شپه چي کله ټول هغه شیان چي د آسمان او ځمکي په منځ کي دي په خپله تیاره کي پټ کړي او قسم په ورځ چي کله څرګنده او روښانه سي.

بل ځای يې فرمایلي دي:

﴿ وَٱلۡفَجۡرِ ۝١ وَلَيَالٍ عَشۡرٖ ۝٢ ﴾[ الفجر:۸۹/۱-۲]

ژباړه: قسم په سپیدې چاود (وختي سهار) باندي او د لوی اختر (ذي الحجې) د میاشتي په لومړیو لسو شپو باندي.

بل ځای يې بیا فرمایلي دي:

﴿وَٱلضُّحَىٰ ۝١ وَٱلَّيۡلِ إِذَا سَجَىٰ ۝٢﴾ [ الضحى:۹۳/۱-۲]

ژباړه: قسم په څاښت مهال باندي او قسم په شپه باندي چي کله تکه توره تیاره سي(او انسانان خوځښت پکښي پرېږدي او هوسايي او سکون پکښي غوره کړي).

که چیري تفسیرونه مطالعه کړو ، نو راته څرگنده به سي چي لوی څښتن چي کله انسانانو ته د یوه شي ارزښت ور ښيي یا د یوه شی لور ته د انسانانو پام اړوي، نو په هغه شي باندي قسم اخلي، څو انسانان هغه ته متوجې کړي او د هغه په اهمیت او ارزښت يې پوه کړي. د هغو ارزښتناکو شیانو څخه یو هم وخت دی چی لوی څښتن په وارو وارو په هغه باندي قسم اخیستی دی او انسانان يې د هغه اهمیت او ارزښت ته متوجې کړي دي.

## په اسلام کي ډېر کارونه پر وخت وېشل سوي دي

د اسلام سپېڅلی دین د نورو ادیانو په پرتله یو منظم او د مهال سره سم وېشل سوی دین دی. په اسلام کي ډېر کارونه پر وخت تر سره کيږي او پرته له وخت څخه ځیني کارونه د لوی څښتن په نزد د قبلولو وړ نه وي. د بېلگي په توگه : پنځه وخته لمونځونه پروخت ادا کيږي. روژه پر وخت نیول کيږي. زکات پر وخت ورکول کيږي. حج پر وخت ادا کيږي. عرفه پر وخت تر سره کيږي. اذانونه پر وخت کيږي. د تهجد لمونځ پر وخت کيږي او داسي ډېر نور کارونه دي چي د هر یوه لپاره وخت ټاکلی دی او د وخت او زمان تر تېرېدو وروسته بیا د لوی څښتن په نزد د قبلولو وړ نه وي. مثلا : د لمانځه د وخت په اړه په قرآن کریم کي راغلي دي:

﴿ إِنَّ ٱلصَّلَوٰةَ كَانَتۡ عَلَى ٱلۡمُؤۡمِنِينَ كِتَٰبٗا مَّوۡقُوتٗا ۝١٠٣ ﴾

[النساء: ٤/ ١٠٣]

ژباړه: بې شکه چې لمونځ (په شریعت کې) پر مسلمانانو په ټاکلو وختونو کې فرض سوی دی(تر خپل وخت ځنډېده یې بې له عذره جواز نه لري).

د روژې د میاشتي روژه هم پروخت نیول کیږي. ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:

«د میاشتي په لیدو سره روژه ونیسئ او د هغې په لیدو سره روژه ماته وکړئ».

او لوی څښتن بیا فرمایلي دي:

﴿ أَيَّامًا مَّعْدُودَاتٍ ۚ فَمَن كَانَ مِنكُم مَّرِيضًا أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ ۚ وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ ۖ فَمَن تَطَوَّعَ خَيْرًا فَهُوَ خَيْرٌ لَّهُ ۚ وَأَن تَصُومُوا خَيْرٌ لَّكُمْ ۖ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿١٨٤﴾ ﴾[البقره: ٢/ ١٨٤]

ژباړه: د څو په شمار ورځو روژې دي. خو که له تاسي څخه څوک ناروغ وي یا مسافر وي، نو هغه دي په نورو ورځو کي دغه شمېر روژې پوره کړي. او څوک چي روژه نیسي، خو په ډېر مشقت سره هغه دي(د یوې روژې په بدل کي) یوه مسکین ته خواړه ورکړي، فدیه دي ادا کړي. پر دې سربېره که څوک په خپله خوښه څه نېکي وکړي، نو دا د هغه لپاره ډېره ښه ده. او که تاسي پوه سئ نو تاسي ته د روژې نیول ډېر ګټور دي.

د حج وخت هم ټاکلی دی . په دې اړه لوی څښتن فرمایلي دي:

﴿ الْحَجُّ أَشْهُرٌ مَّعْلُومَاتٌ ۚ ﴿١٩٧﴾ ﴾[البقره: ٢/ ١٩٧]

ژباړه: د حج کولو وخت څو ټاکلي میاشتي دي(، د کوچني اختر (شوال) په میاشت پیلیږي او لوی اختر (د ذو الحجې) د میاشتي

په سمه پای ته رسیږي).

د زکات ورکولو لپاره هم وخت ټاکل سوی دی.په دې اړه لوی څښتن فرمايي:

﴿ وَءَاتُوا حَقَّهُۥ يَوۡمَ حَصَادِهِۦ ﴾[الانعام:٦/١٤١]

ژباړه: او(ای خلکو!) کله چې د فصلونو د حاصلاتو د اخیستلو (ټولولو) وخت ورسیږي، نو (سمدستي) د الله حق (فرض سوی زکات، د بې وزلو مسلم حق بې احسان اچولو او انتظاره) څني ورکړئ(که یې په لومړي وخت کي ورکول ممکن وي، ځنډوي یې مه).

د عرفې په اړه هم راغلي دي چې که چیري څوک د ذی الحجې پر نهمه ورځ د عرفات پر غونډۍ حاضر نه سي، حج یې نه صحیح کیږي.

د دې ټولو اسلامي بنسټیزو کارونو وختونه ټاکلي دي او له دې څخه د وخت قدر او ارزښت او د وخت بې ځایه نه ضایع کول، په څرګنده توګه معلومیږي. اسلام هیڅکله نه غواړي چې یوه شېبه بې ځایه ضایع سي او د هرشي لپاره یې مهال وېش جوړ کړی دی.

## وخت لوی نعمت دی

که چیري ستاسي څخه پوښتنه وسي چې د لوی څښتن سبحانه له خوا چې تاسي ته کوم نعمتونه در کړل سوي دي ، په هغو کي تر ټولو لوی او ارزښتناک نعمت کوم دی، نو ستاسي ځواب به څه وي؟ فکرکوم ډېری کسان به ووايي چې شته، اولادونه، روغتیا او داسي نور. خو پوهان وايي چې د نورو نعمتونو تر څنګ وخت هم ستر نعمت دی. هو! وخت داسي نعمت دی چې لوی څښتن هر انسان ته شتمن وي که بې وزلی ،که ځوان وي که زوړ ، ښځه وي که نر ورکړی دی او په دې باندي هغه کسان پوهیږي چې د وخت ارزښت ورته معلوم وي.

په دې اړه د "مخزن اخلاق" ليکوال څه ښه ليکلي دي:

" وخت هغه نعمت دی چې هر چاته د لوی څښتن له خوا ورکړل سوی دی. کوم خلک چې دا شتمني په سمه طريقه په مناسبو کارونو باندي بوختوي او لګوي ، هغوی جسماً راحت او روحاً ډېر خوشاله وي. د وخت څخه په سمه ګټه اخيستو سره له يوه وحشي انسان څخه هم مهذب سړی جوړيږي او له يوه مهذب سړي څخه ملايکه غوندي کس جوړيږي. د وخت له برکته له جاهل څخه عالم او له ناپوه څخه پوه جوړيږي. وخت يوه داسي شتمني ده چې واکمن، بې واکه، شتمن، بې وزلي، زورور او کمزوري ته يو ډول ورکړل سوی دی"[1].

وخت داسي نعمت دی چې که چيري تاسي له هغه څخه ګټه واخلئ، نو ستاسي د دنيا او آخرت د نېکمرغۍ لامل ګرځي او که چيري تاسي د هغه په ارزښت پوه نه سئ، نو هغه تاسي له منځه وړي. له همدې امله خو په عربي ژبه کي يوه مشهوره مقوله ده چي وايي:

" الْوَقْتُ كَالسَّيْفِ إِنْ لَمْ تَقْطَعْهُ قَطَعَكَ ".

ژباړه: وخت د توري غوندي دی. که يې ته غوڅ (قطع) نه کړې (په يوه کار يې اخته نه کړئ) تا به (د وزګارتيا په حالت کي) غوڅ کړي او له منځه به دي يوسي.

سعدي وايي:

سر از جيب غفلت بر آور کنون
که فردا نماني بخجلت نگون
قيامت که نيکان باعلی رسند
ز قعر ثری بر ثريا رسند
ترا خود بماند سر از ننگ پيش

---

(۱)- متاع وقت اور کاروان علم، ۷۵مخ. د مخزن اخلاق، ٦٠٦ او۶۱۴مخونو په حواله.

کــه کــردت برآيــد عملهــای خــويش
بـــــرادر ز کـــــار بـــــدان شـــــرم دار
کــه در روی نيکــان شــوی شرمســار

له بده مرغه ډېر کسان د دې ستر نعمت په ښېګڼو نه پوهيږي او خپل ارزښتناک وختونه بې ځايه ضايع کوي.

الوزير الصالح يحي بن هبيرة رحمة الله عليه څه ښه ويلي دي:

الوقتُ أنفسُ مـــا عُنيـــتَ بحفظـــه
وأراه أسهلُ مـــا عليـــك يَضـــيعُ

ژباړه: وخت يوه داسي ډېره نفيسه او ارزښتناکه شتمني ده چي ته اړ يې د هغې د ساتني لپاره خپل همت په کار وګوماري او له هغې څخه د ګټې اخيستني کوښښ او اهتمام وکړې. خو زه وينم چي دغه وخت د هغو چارو او شيانو په ډله کي چي ستا څخه ضايع کيږي په ډېره آساني سره در څخه هدر کيږي.

که غواړئ چي انساني او شرافتمندانه ژوند وکړئ، نو د دې ستر نعمت قدر وکړئ او مه پرېږدئ چي يوه شېبه بې ځايه در څخه تېره سي. ځکه دا نعمت هر انسان ته ورکړل سوی دی. خو هغه کسان چي د دې په اهيمت پوه سوي دي او کار يې ځني اخيستی دی، د هغو نومونه په زرينو کرښو ليکل سوي دي. او چا چي دا پانګه بې ځايه ضايع کړې ده، په هغو محکمې او بنديخانې ډکي دي.

## وخت لږ دی

که چيري هر انسان خپل ژوند ته متوجې سي او خپل تېرسوی عمرپه يادکړي، نو ورته څرګنده به سي چي په دې نړۍ کي د اوسېدو او کار کولو لپاره وخت ډېر لږ دی. ځکه که چيري د انسان عمر شپېته کاله وي او هره ورځ اته ساعته په خوب کي تېر کړي، نو د هغه شل کاله په خوب کي تيريږي. پاته سوه څلوېښت کاله، په دې کلونو کي يې اتلس کلونه د کوچنيوالي دي. په پاته دوه ويشت کاله. په

دې کې یې څو کاله د ژوند دي چې په دې حساب یې ډېرلږ کلونه د ځوانۍ او کار لپاره پاته کیږي او هغه هم د باد په شان ژر تیریږي.

د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه څخه روایت سوی دی چې کله نوح علیه السلام ته د مرګ فرشته ورسي، نو ورته ووایي : "په پیغمبرانو کي تر ټولو اوږد عمر تاسي ته درکړل سوی دی، نو تاسي نړۍ څنګه وموندل؟".

نوح علیه السلام ورته وفرمایي: " لکه یو څوک چې یوه داسي ځای ته دننه سي ، چې دوې دروازې لري، په یوه دروازه ننوزي او تر څه ځنډ وروسته تر بلې بیر ته ووځي"[۲].

د وخت د کمښت او لږ والي له امله حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه فرمایلي دي:

"زه یو څه وخت ویده سم؟ ځکه که د شپې له خوا ټوله شپه ویده سم، نو د خپل ځښتن حق ضایع کوم او که د ورځي ویده سم، نو د رعیت حق نه ادا کوم، نو زه یو څه وخت ویدېږم؟".

د عقل په نزد د انسان عمر تر تقریبا اویا کلونو ډېر نه دی. لوی ځښتن چې څه انسانان پیدا کړي دي، په هغو کي یې ځینو ته لکه نوح علیه السلام ته اوږد عمر ورکړی دی. نورو ډېرو انسانانو ته یې د شپېتو یا اویا کالو په شاوخوا کي عمرونه وکړي دي. چې دغه عمر ډېر ژر د باد غوندي او د سترګي په رپېدو سره تیریږي. په دې اړه رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمایلي دي:

« أَعْمَارُ أُمَّتِي مَا بَيْنَ السِّتِّينَ إِلَى السَّبْعِينَ، وَأَقَلُّهُمْ مَنْ يَجُوزُ ذَلِكَ »[۳].

ژباړه: زما د امت عمرونه به د شپېتو او اویا کلنو ترمنځ وي. ډېر لږ خلک به تر دې ډېر عمرونه لري.

---

(۲)- نایاب تحفه، ۴۸ مخ. د تفسیر ابن کثیر، ۱۰۱۳ مخ په حواله.

(۳)- سنن ترمذي، باب ما جاء في فناء اعمار هذه الامة ما بین الستین الی السبعین، ۲۳۳۱ شمېره حدیث. دغه حدیث شیخ الباني حسن صحیح بللی دی.

له همدې امله خو شاعر په ډېرارمان سره ویلي دي:

عمر عزيز قابل سوز و گداز نيست
اين رشته را مسوز که چندين دراز نيست

نامتو عالم علامه ابن جوزي رحمة الله علیه د خپل زوی لپاره یوه نصیحت نامه د" لفتة الكبد في نصيحة الولد" په نامه لیکلې ده. نوموړي د وخت د اهمیت او د هغه د قدر په اړه داسې لیکلي دي:

" اعلم يا بُنيّ أنّ الأيّام تبسط ساعات والسّاعات تبسط أنفاسًا وكلّ نفَس خزانة، فاحذر أن يذهب نفَس بغير شيء، فترى في القيامة خزانة فارغة، فتندم! وانظر كلّ ساعة من ساعاتك بماذا تذهب، فلا تُودّعها إلاّ إلى أشرف ما يمكن، ولا تهمل نفسك، وعوّدها أشرف ما يكون من العمل وأحسنه، وابعث إلى صندوق القبر ما يسرّك يوم الوصول إليه" (۴).

ژباړه: ای زویه! د ژوند څو ورځې د څو ساعتونو او څو ساعتونه د څو شېبو څخه عبارت دي. د ژوند هره شېبه یوه خزانه ده. نو پام او احتیاط کوه چې یوه شېبه هم بې ګټې در څخه تېره نه سي. داسې نه چې سبا (د قیامت په ورځ) خپله ذخیره خالي ومومې او بیا د پښېمانۍ اوښکې توی کړې. او وګوره چې ستا ټول وختونه پر څه تېرېږي او د یوې یوې شېبې په اړه حساب کوه، نو د خپل ژوند هره شېبه هغه کار ته ځانګړې کړه چې کېدای سي تر ټولو ښه او غوره وي او په دې هڅه کې اوسه چې هره شېبه دي په یوه ګټور کار باندې بوخته کړې. ځان دي لټۍ ته مه پرېږده، د بې کاره ژوند کولو څخه یې وساته او ډېر ښه کار کولو ته یې وګوماره او د قبر صندوق ته دې هغه څه واستوه چې کله ور سې خوشاله دې کړي.

---

(۴)- متاع وقت اور کاروان علم،۵٦ مخ.

**امام شافعي رحمة الله علیه فرمایلي دي:**

"صَحِبْتُ الصُّوفِيَّةَ، فَمَا انْتَفَعْتُ مِنْهُمْ إِلَّا بِكَلِمَتَيْنِ : سَمِعْتُهُمْ يَقُولُونَ: الْوَقْتُ سَيْفٌ. فَإِنْ قَطَعْتَهُ وَإِلَّا قَطَعَكَ. وَنَفْسُكَ إِنْ لَمْ تَشْغَلْهَا بِالْحَقِّ، وَإِلَّا شَغَلَتْكَ بِالْبَاطِلِ" (۵).

**ژباړه: ما یو څه وخت د صوفیانو سره تېر کړی دی. د هغو سره په ناسته پاسته کي مي د دغو دوو کلمو ګټه څني اخیستې ده : وخت د توري په شان دی ، که دي غوڅه کړه (په یوه کار دي اخته کړه) ښه، که نه هغه به تا (د وزګارۍ په حالت کي) غوڅ کړي او له منځه به دي یوسي. او بل دا چي د خپل ځان ساتنه باید وکړې. ځکه که چیري ته هغه په حق (ښو کارونو) بوخت نه کړې، نو هغه به تا په باطل(بدو چارو) اخته کړي.**

**ځیني کسان په ژوند کي ډېر پلانونه لري، غواړي ډېر کارونه تر سره کړي. ډیري هلي ځلي یې په نیت کي وي. خو که چیري د وخت څخه سمه ګټه وانه خیستل سي او بې ځایه ضایع سي، نو هغه کسان تر خپلو موخو پوري نه سي رسېدلای. له دې امله باید متوجې سو چي وخت ډېر لږ دی. زموږ وخت زموږ د کارونو لپاره بسنه نه کوي. خو په یوه شرط موږ کولای سو چي ځیني پلانونه او کارونه په ژوند کي تر سره کړو او هغه هم د وخت څخه د سمي ګټي اخیستو په صورت کي کیږي. یوه شاعر څه ښه ویلي دي:**

**نګه دار فرصت که عالم دمی است**
**دمی پیش عالم به از عالمی است**

**خو باید یادونه وکړو چي د وخت ارزښت د عمر په اوږدوالي پوري هم اړه نه لري. ډېر کسان دي چي عمرونه یې ډېر اوږده وي، خو څنګه چي یې له وخت څخه ګټه نه وي اخیستې، عمر یې بې کاره او**

---

(۵)- مدارج السالکین ، ۳/ ۱۲۴ مخ. او متاع وقت اور کاروان علم ، ۵٦مخ.

عبث تېر کړی وي. خو د تاريخ په پاڼو کي د ډېرو داسي کسانو نومونه ثبت سوي دي چي عمرونه يې ډېر لږ وه، خو د وخت څخه د ګټې اخيستو او ارزښت پوهېدو په صورت کي يې ډېري ستري کارنامې ترسره کړي دي. د بېلګې په توګه: اسامه بن زيد رضي الله عنه د نولسو کالو وو چي رسول الله صلي الله عليه وسلم د لښکر مشروتيا که او هغه هم يو داسي لښکر وو چي د رسول الله صلي الله عليه وسلم ډېرستر ستر صحابه پکښي موجود وه او رسول الله صلي الله عليه وسلم د اسامه د شخصيت په اړه فرمايلي دي:

«هغه د لښکر د مشر تابه لپاره پيدا سوی دی. يعني د مشرتابه وړتيا لري».

همداراز سعد بن معاذ رضي الله عنه د دېرشو کالو په عمر، د اسلام په دين مشرف سوی دی او د اووه دېرشو کالو په عمر وفات سوی دی. خو هغه د اوو کالو په موده کي وکولای سوای چي د اسلام لپاره ډېر بې ساري کارونه تر سره کړي. د هغه په اړه رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمايلي دي:

«د لوی څښتن عرش د سعد بن معاذ د مړيني له امله پر لرزه راغی».

امام نووی رحمة الله عليه چي د "رياض الصالحين" ليکوال دی، د پنځه څلوېښتو کالو په عمر له دې نړۍ څخه سترګي پټې کړي دي او ده په خپل دې لږ عمر کي پنځه سوه جلده کتابونه ليکلي دي.

پوهېږئ چي ولي دې کسانو په لږ وخت کي داسي ستري کارنامې تر سره کړي دي؟ ځکه چي هغوی د وخت په ارزښت او قدر پوهېدل او د خپل ژوند د هري شېبې څخه يې سمه ګټه اخيستل.

وخت زموږ په ژوند کي د يوه چانس په توګه راځي او که چيري

موږ او تاسي له هغه څخه ګټه وانه خلو  او په يوه کار يې بوخت نه کړو، نو ډېر ژر بيرته را څخه ځي او بيا هيڅکله نه راګرځي. د وخت کموالي ته که متوجې سو ، نو هيڅ به په پوه نه سو چي څنګه راغی او څنګه ژر ولاړی. نو نېکمرغه کسان هغه ځوک دی، چي د وخت څخه ژر ګټه اخلي او په يوه کار يې بوختوي.

بــد نــامی حيــات دو روزی نبــود بــيش
وان هم "کليم" باتو چگويم چسان گذشت
يـک روز صـرف بسـتن دل شـدبه ايـن و آن
روز دگــر بکنــدن دل زيــن و آن گذشــت

مسؤوليتونه او کارونه ، پلانونه او فکرونه ، هيلي او اميدونه  ډېر دي. خو وخت  ډېر لږ دی. اوس هم موږ او تاسي د ژوند ډېره برخه ضايع کړې ده او ډېر وخت مو له لاسه ورکړی دی.

نو څه فکر کوئ؟  پاځئ!  همدا اوس په کار لاس پوري کړئ او د وخت څخه ژر ګټه واخلئ. ځو  دا پاته وخت در څخه تېر نه سي او تاسي د خپلو هيلو او اميدونو سره نهيلي پاته نه سئ.

من  نمی  گويم  زيان  کن  يا  بفکرسود  باش
ای ز فرصت بی خبر در هر چه باشی زود باش

## وخت ژر تيريږي

د وخت د پښو ږغ ځوک نه اوري، په داسي حال کي چي وخت په ډېري تيزۍ سره روان دی. وخت د باد د څپې په شان دی چي په تيزي سره راځي او ډېر ژر بيرته ځي. د انسان د زړه هره درزا موږ ته دا وايي چي وخت يو څو  دقيقې او شېبې دی او  ډېر ژر تيريږي. تاسي که د وخت څخه ګټه اخلئ که يې  نه اخلئ، خو وخت خپل رفتار ته په تيزي سره دوام ورکوي او ستاسي کار ته نه ګوري چي تاسي څه کوئ؟ لوی څښتن فرمايلي دي:

﴿ وَيَوۡمَ يَحۡشُرُهُمۡ كَأَن لَّمۡ يَلۡبَثُوٓاْ إِلَّا سَاعَةٗ مِّنَ ٱلنَّهَارِ يَتَعَارَفُونَ بَيۡنَهُمۡۚ قَدۡ خَسِرَ ٱلَّذِينَ كَذَّبُواْ بِلِقَآءِ ٱللَّهِ وَمَا كَانُواْ مُهۡتَدِينَ ﴿٤٥﴾ ﴾ [يونس: ۱۰/ ٤٥]

ژباړه: او په کومه ورځ چې الله خلک (په قیامت د حساب لپاره) راوپاڅوي، نو هغو ته داسې ښکاره سي، لکه دوی چې (د دنیا په ژوندانه او برزخ [د مړيني او حشر ترمنځ موده] کي) د ورځې يو ساعت اوسېدلي دي، نه زيات. (ځکه نو) دوی په دغه ورځ يو له بله سره پېژني.(بيا د قيامت د سختيو او هولناکيو د شدت له امله يو بل سره هېر کړي). حقيقت دادی چې هغو وګړو تاوان وکړ چې (په آخرت کي يې) د الله سره مخامخ کېدل درواغ وګڼل او پر سمه لار نه وه روان. (يعني: په دنيا کي يې د بيا راپاڅېدو پر ورځ ايمان نه درلود، څو له تاوانه وژغورل سي).

بل ځای يې فرمايلي دي:

﴿ يَتَخَٰفَتُونَ بَيۡنَهُمۡ إِن لَّبِثۡتُمۡ إِلَّا عَشۡرٗا ﴿١٠٣﴾ نَّحۡنُ أَعۡلَمُ بِمَا يَقُولُونَ إِذۡ يَقُولُ أَمۡثَلُهُمۡ طَرِيقَةً إِن لَّبِثۡتُمۡ إِلَّا يَوۡمٗا ﴿١٠٤﴾ ﴾ [طه: ۲۰/ ۱۰۳-۱۰٤]

ژباړه: په خپلو منځو کي به پټ سره وواييي چې تاسي به په برزخ (د مړيني له وخته د راپاڅېدو ترمهاله[په قبرونو کي]) له لسو شپو ورځو زيات وخت نه وي تېر کړی.

موږ د هغه څه په حقيقت چې دوی يې پټ سره وايي ډېر ښه پوهيږو، کله چې له دوی څخه تر ټولو د ډېر عقل خاوند دوی ته وايي: تاسي هلته تر يوې ورځې زيات نه ياست پاته سوي.

يوه شاعر څه ښه ويلي دي:

دَقَّاتُ قلـــبِ المـــرءِ قائلـــةٌ لـــه
إنَّ الحيــــاةَ دقــــائقٌ وثــــواني
فارفع لنفسك بعدَ موتكَ ذكرهــا
فالـــذكرُ للإنســـان عُمـــرٌ ثـــاني

ژباړه: د انسان د زړه درزا ده ته وايي چي ژوند څو دقيقې او څو شېبې دی. نو تر خپلي مړيني وروسته خپل ياد پرېږده. ځکه ياد د انسان لپاره دوهم عمر دی.

شېبې په دقيقو بدلېږي ، دقيقې په ساعتونو بدلېږي او ساعتونه په ورځو او شپو بدلېږي . خو له بده مرغه موږ د وخت په تيزي او رفتار هيڅ نه پوهيږو. وخت د سيند په شان بهيږي او مخه يې هيڅوک نه سي نيولای. په عادي حالاتو کي موږ د وخت په تيزي نه پوهيږو ، خو کله چي په عادي ژوند کي لږ ښه يا بد بدلون راسي، بيا د وخت تېرېدو ته متوجې کيږو.

وخت په حقيقت کي هم د اوبو په شان بهيږي او مخه يې هيڅوک نه سي نيولای. ښه هغه دی چي د سمندر له دې تېزو څپو څخه ژر کار واخلي او په خپله ګټه يې تمام کړي.

لوړدرشل احمدشاه بابا رحمة الله عليه وايي:

شـــيرين عمـــر چـــي تيريـــږي دريغـــه دريغـــه
د اوبـــو پـــه څېـــر بهيـــږي دريغـــه دريغـــه
ولـــي زړه پـــرې خبـــر نـــه دی لـــه رفتنـــه
چـــي دا هســـي ژر تيريـــږي دريغـــه دريغـــه
ولـــي هســـی شـــوې بـــې غمـــه زمـــا دلـــه
عمـــر بـــاد غونـــدي چليـــږي دريغـــه دريغـــه
دا يـــــاران لکــــه ګلونــــه د بهــــار دي
د خـــزان پـــه تـــاو رژيـــږي دريغـــه دريغـــه

نامتو شاعر الصلتان العبدي ويلي دي:

أشـــاب الصـــغير وأفـــنى الكـــبي
كــــرُّ الليـــــالي ومَـــــرُّ العِشـــــي
إذا ليلـــــــةُ هَرمـــــــت يومهـــــا
أتـــى بعـــد ذلـــك يـــومٌ فَتِـــي

ژباړه: د سبا او بېګا تګ راتګ کوچنيان زاړه کړل او زاړه يې له منځه يو وړل. کله چې شپه يوه ورځ زړه کړي، په هغې پسې بيا بله ځوانه ورځ راځي.

په حقيقت کې هم وخت هر نوی شی زړوي او هر زوړ شی له منځه وړي. خو موږ د هغه د تيزۍ په يون هيڅ نه پوهيږو.

موږ او تاسي خوشاله يو چې ژر وخت تېر سي او راتلونکي ته هيلي لرو ، خو په دې نه پوهېږو چې د وخت تېرېدل زموږ له منځه تلل دي. په دې اړه شاعر وايي:

يَسُرُّ المرءَ مـــا ذَهَـــبَ الليّـــالي
وكَـــانَ ذَهَـــابُهنّ لَـــهُ ذَهابَـــا

ژباړه: د شپو په تېرېدو سړی خوشاله کيږي، حال دا چې د هغه تېرېده د ده ختمېده دي.

وايي چې يوه سړي څو ټوټې يخی لمر ته ايښی وو او نارې يې وهلې چې راسئ دا را څخه رانيسئ، زما پانګه له منځه ځي. د انسان عمر هم د همدې يخي د ټوټو په شان دی، چې په ډېره چټکۍ سره او به کيږي او له منځه ځي، حضرت خوشال خان خټک رحمة الله عليه په خپل يوه فارسي شعر کې وايي:

آه وواويـلا کــه ديــدم بــی ثبــات وبــی بقــا
عمر چون باد بهار وعيش چون پيمان وقت
نالــه مرغــان ايــن ګلشــن بمــن معلــوم شــد

آه وفریاد وفغان دارند بر بستان وقت
دشمن وقت خودیم وخود روا داریم ما
صد ستم از دست خود در ساعت جانان وقت

مولانا رحمت الله سبحاني رحمة الله عليه ليکلي دي:

"وخت موږ ته داسي راځي لکه يو ښه ملګری چي د خپلي ظاهري ښې په بدلولو سره راځي او د ځان سره ډيري ارزښتناکي ډالۍ راوړي. خو که چيري موږ د هغه څخه ګټه وانه خلو، نو هغه کرار کرار د خپلو ډاليو سره بيرته ځي او بيا هيڅکله نه راګرځي"[٦].

ويل کيږي چي شهيد امام حسن البنا رحمة الله عليه ته وويل سوه: " ته څه وخت ويدېږې؟". هغه ورته وويل: "دعوت او مسؤوليتونه دومره ډېرسوي دي چي خوب ته مي لږ وخت ټاکلی دی او اوس زما مسؤوليتونه تر وخت ډېرسوي دي"[٧].

نو که چيري انسان غواړي له ځانه واقعي انسان جوړ کړي او باعزته او خوشاله ژوند ولري او په ژوند کي له ځانه يو شی جوړ کړي، نو د وخت څخه دي سمه ګټه اخلي او د هغه له بې ځايه تېرېدو څخه دي ډډه وکړي. ځکه د وخت د تېرېدو مخه موږ نه سو نيولای، خو د هغه څخه ګټه هرومرو اخيستلای سو.

عالم بی خبری طرفه بهشتی بوداست
حیف صد حیف که ما دیر خبردار شدیم

## د دې نړۍ بېلګه

د دې نړۍ بېلګه او په هغې کي د وخت تيزي ډېرو کسانو د بېلا بېلو شيانو سره تشبيه کړې ده. خو تر ټوله ښه تشبيه د "مخزن اخلاق"

---

(٦)- مثالی استاذ، ٦١ مخ.

(٧)- جوانان و آینده افغانستان، ۴۲ مخ.

کتاب لیکوال مولانا رحمت الله سبحانی کړې ده او په نوموړي کتاب کي يې ويلي دي:

"د نړۍ بېلګه داسي ده، لکه يو سړی چي په ځنګله کي روان وي، چي ګوري په هغه يو غټ زمری پسې دی. هغه سړی د زمري له ويري ځغلي ځغلي. کله چي ډېر ستړی سي، نو که ګوري چي مخته يې يو غټ ارهټ پيدا سي. هغه غواړي چي په هغه ارهټ کي ځان واچوي، څو د زمري له شره خلاص سي. خو ناڅاپه هغه ووینې چي په ارهټ کي يو غټ ښامار پروت دی. اوس مخته د ښامار وېره ده او شاته د زمري وېره ده. په دې حال کي هغه يوه غټه ونه ووینې، سړی وني ته وخيژي. خو وروسته دی ووینې چي دوه موږکان يو تور او بل سپين د وني په بيخ اخته دي او ژر ژر يې خوري. هغه سړی ډېر و ويريږي او د ځان سره ووايي: ډېر ژر به موږکان د وني بيخ وخوري او ونه به چپه سي او لاندي ښامار او زمری به ما وخوري. په دې وخت کي د هغه سړي سترګي د وني په سر کي د عسلو د غالبوزو پر يوه چرګيني باندي ولګيږي. سړی د هغو د خوږو عسلو په خوړلو بوخت سي او د زمري، ښامار او موږکانو وېره يې له ياده ووځي. په دې وخت کي ناڅاپه د وني تنه پرې سي او هغه سړی لاندي ولويږي. زمری هغه ځيري کړي او د ښامار په خوله کي يې ور کړي".

ګرانو لوستونکو! په دې مثال کي له ځنګله څخه مراد نړۍ ده او زمری مرګ دی چي په موږ پسې دی. ارهټ قبر دی چي د هغه په مخکي دی او ښامار زموږ بد عملونه دي چي په قبر کي راسره دي او دوه موږکان شپه او ورځ دي او ونه عمر دی او خواږه عسل د نړۍ غافلونکي لذتونه او خواهشات دي چي د انسان څخه مرګ، قبر، او بد عملونه هېروي. او په ناڅاپه توګه د مرګ پر راتلو باندي پرته له پښېمانۍ او حسرت څخه بل هيڅ شی په

لاس نه ورځي. (۸).

د دې نړۍ بېلګه په حقيقت کي هم د دې کيسې په شان ده. که چا سمه ګټه ځني واخيسته او د وخت په قدر او ارزښت پوه سو، نو هغه به نېکمرغه وي او که خدای مه کړه وخت عبث او بې کاره پر تېر سو او يوازي د ده د خواهشاتو تابع وو، نو هغه ناکامه دی او پر ته له پښېمانۍ څخه بل هيڅ شی په لاس نه ورځي.

در دست فقير نيست نقدی جز وقت

آن نيز گـــر از دســـت دهـــد وای بـــرو

## وخت مه ضايع کوئ!

که چيري انسان د وخت په ارزښت پوه سي او د خپل عمر چټک تېرېده درک کړي او وګوري چي تېر عمرمي څنګه ژر عبث تېر او ضايع سو، نو هيڅکله به خپل ارزښتناک وخت ضايع نه کړي. وخت د لوی څښتن د نعمتونو څخه يو ستر نعمت دی چي موږ ته راکړل سوی دی. د هغه ساتنه او په سمه توګه استعمالول پرموږ ټولو لازم دی. ولي نن ورځ موږ وينو چي د انسانانو په نزد تر ټولو بې ارزښته شی وخت دی او په ډيره بې پروايي سره يې ضايع کوي.

لوی صحابي عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمايي:

"مَا نَدِمْتُ عَلَى شَيْءٍ نَدَمِي عَلَى يَوْمٍ غَرَبَتْ شَمْسُهُ، نَقَصَ فِيـــهِ أَجَلِي وَلَمْ يَزِدْ فِيهِ عَمَلِي" (۹).

زه په هيڅ شي دومره نه يم پښېمانه سوی، څومره چي په دې پښېمانه کېږم چي د يوې ورځي لمر ډوب سي، زما عمر ورسره کم سي، خو عمل مي پکښې ډېر نه سي.

امام ابن جوزي رحمة الله عليه د هغو کسانو په اړه چي شپه او ورځ

(۸)- مخزن اخلاق، ۴۰۲ مخ.

(۹)- د علي بن نايف الشحود الوقت وأهميته في حياة المسلم، ۱/۱۳۲ مخ.

خپل وخت په بې کارې سره تېروي داسې فرمايي:

"ډېر خلک وينم چې په بېلا بېلو طريقو سره خپل وختونه بې کاره تېروي. که شپې اوږدې وي، هغه په بې هوده مجلسونو او خبرو او يا هم د هغو کتابونو په مطالعه کولو سره تېروي، چې بې ګټې او په مجازي مينه باندې مشتمل وي او که ورځې اوږدې وي، هغه په ډېر خوب کولو باندې تېروي او تر خوب وروسته خپله ورځ د سيند پر غاړه په پياده تلو يا هم په بازار کې په ګرځېدو سره تېروي. زما په نظر هغوی په بېړۍ کې د ناستو هغو کسانو په شان دي، چې بېړۍ ډېره چټکه روانه وي او دوی په خپلو خبرو داسې بوخت وي چې د بېړۍ په چټکتيا هيڅ نه خبرېږي او په هغو کې ډېر لږ کسان دي چې د وخت په ارزښت پوهېږي او د هغه سفرلپاره چې ډېر اوږد دی چمتو والی نيسي. نو خدای په پام کې ونيسئ او د خپل عمر د مختلفو او ګټورو فرصتونو د حفظ او ساتنې کوښښ وکړئ او دمخه تر دې چې فرصتونه مو له لاسه ووزي کار او عمل ته ور ودانګئ او د مهال د چټک تګ سره سيالي وکړئ" [۱۰].

په حقيقت کې هم نن ورځ په ټوله نړۍ کې تر ټولو د مسلمانانو له خوا وخت ډېر ضايع کېږي او بې ځايه تېرېږي او زموږ تر ټولو ستره تېروتنه په دې کې ده چې موږ ته هرشی ارزښت لري، يو وخت اهميت نه لري او قدر يې نه کېږي. په نړۍ کې وخت په شېبو او دقيقو حسابل کېږي، خو موږ ساعتونه، ساعتونه پر ته له حساب څخه بې کاره تېروو.

يوه شاعرويلي دي:

بَــادِرِ الفُرْصَــةَ وَاحْــذَرْ فَوْتَهَــا

فَبُلُوغُ الْعِزِّ فِــي نَيْــلِ الفُــرَصْ

ژباړه: لـه وخـت څخـه ژر ګټـه واخلـه او د هغـه د تېرېـدو څخـه

---

(۱۰)- همت بلند دار، ۵۰ مخ. د قيمة الزمن عند العلماء، ۲۷- ۲۸ مخونو په حواله.

ووېرېږه. ځکه عزت او شرف له وخت څخه د سمي ګټې اخيستو په صورت کې پيدا کيږي.

په ډېر افسوس سره بايد ووايو چې نن ورځ په اسلامي نړۍ کې ځومره وختونه بې ځايه ضايع کيږي. څومره مسلمانان په بې ګټو کارونو باندي خپلي شپې سبا کوي. نن ورځ چې اسلامي نړۍ داسي وروسته پاته ده، دا ټول د وخت د ضايع کولو او بې ځايه تېرولو پايله ده او افسوس پر دې راځي چې نن هم موږ نه يو را ويښ سوي، لا د غفلت په خوب ويده يو او وخت دغسي ضايع کوو.

اې مسلمانه را ويښ سه! او د وخت څخه دې ګټه واخله. د وخت د ضايع کېدو نتيجه دې وليدل، نو پر دې سربېره بيا ولې خپل وخت بې کاره تېروې؟. خپل دين او ملت ته کار وکړه او د وخت له هري شېبې څخه ګټه واخله.

## وخت ضايع کول يو ډول ځان وژنه ده

اسلامي عالمان باور لري او وايي چې: "الوقت هو الحياة" يعني وخت ژوند دی. نو که چيري وخت په بې معنا او بې ګټو کارونو ضايع کړو، نو دا داسي معنا لري، لکه د انسان ژوند چې ضايع کيږي. بې کاره کښېنستل او وخت ضايع کول د ځان ضايع کول دي.

د "متاع وقت اور کاروان علم" نومي کتاب مؤلف په خپل کتاب کي په دې اړه ليکلي دي:

"حقيقت دا دی چې وخت ضايع کول يو ډول ځان وژنه ده. توپير دا دی چې ځان وژنه څوک د تل لپاره له ژوند کولو څخه بې برخي کوي او د وخت ضايع کول تريوه محدود وخته پوري له ژوندي انسان څخه مړی جوړوي. که چيري انسان هغه شېبې، دقيقې، ساعتونه او ورځې چې په غفلت او بې کارۍ سره تيريږي حساب کړي، نو د هغو شمېر به څو مياشتو ته، بلکې څو کلونو ته ورسيږي.

که چا ته و ويل سي چې ستاسي له عمر څخه لس کاله عمر لږ

کړل سو، نو هغه به ډېر سخت خفه سي. خو همدغه انسان پخپله په بې کاره ناسته سره خپل عمر بربادوي، اما د خپل عمر په دغسي له منځه تلو باندي بیا هیڅ نه خفه کیږي. په داسي حال کي چي پوهان د وخت دغسي ضایع کېده تر مړیني لا اشد ګڼي. علامه ابن القیم رحمه الله په خپل کتاب " الفوائد" کي وايي:

" اضاعة الوقت اشد من الموت لان اضاعة الوقت تقطعك عن الله والدار الآخرة والموت يقطعك عن الدنيا واهلها "[11].

ژباړه: د وخت ضایع کول تر مړیني زیات اشد باله سي، ځکه د وخت ضایع کول تا له لوی څښتن او آخرت څخه بېلوي او مرګ تا له دنیا او د دنیا له اوسېدونکو څخه بېلوي.

که چیري متوجې سو نو راته څرګنده به سي چي نوي سلنه خلک په دې نه پوهیږي چي د خپل عمر ډېره برخه چیري او څنګه تېروي او هغه کسان چي خپل لاسونه یې په جېبونو کي اچولي وي او په کوڅو کي ګرځي، ډېر ژر به خپل دغه لاسونه د بل په جېب هم ننباسي. که تاسي خوښ یاست یا غمجن، له تکلیف او درد څخه د ژغورني یوازنۍ لار خپل وخت بې ځایه نه تېرول دي" [12].

د ژوند هره شېبه د وخت څخه جوړه ده او د وخت هره شېبه بې ځایه تېرول د ژوند له منځه وړل دي. په دې اړه حسن بصري رحمه الله فرمایلي دي:

"ای خلکو! ستاسي عمرونه له سا اخیستلو(ثانیو) او ورځو څخه تشکیل سوي دي. نو هر کله چي ستاسي د ژوند شېبې او ورځي تیري سي، ستاسي د عمر یوه برخه هم تیریږي. ځکه چي د جز

---

(۱۱)- الفوائد ۵۶ مخ.

(۱۲)- متاع وقت اور کاروان علم، ۷۳ مخ.

تېرېده، د کل تېرېده بيانوي"[۱۳].

ابن قيم رحمة الله عليه بيا فرمايلي دي:

"د انسان هره ساچي وزي راوزي او هر ځاځکی خوله چي يې له بدنه وزي، که چيري دا د لوی ځښتن د عبادت لپاره نه وي او د دنيا د ګټي لپاره وي، نو دا به د قيامت په ورځ د پښېمانی لامل وګرځي"[۱۴].

ابن قيم رحمة الله عليه د انسان هره سا دونه ارزښتناکه ګڼلي ده چي په بې ځايه تېرېدو سره به د قيامت په ورځ د پښېمانی لامل وګرځي. له دې څخه ځرګنديږي چي زموږ هره سا د لوی ځښتن سبحانه امانت دی، بايد بې ځايه ضايع نه سي.

نو خپل وخت بې ځايه مه تېروئ،کار وکړئ او ځانونه په ګټورو کارونو بوخت کړئ. د بې کاره ژوند کولو څخه ډډه وکړئ. ځکه د وخت ضايع کول د عمر ضايع کول دي.

له همدې امله خو شاعر په ډېر ارمان سره ويلي دي:

فرصت زدست رفته و حسرت فشرده پای

کار زار دوا گذشته و افسوس نه کرده کسی

## تېر سوی وخت بيا نه راګرځي

که انسان شته له لاسه ورکړي، نو د هلو ځلو او زيار ايستلو په پايله کي يې بيرته تر لاسه کولای سي. که علم له لاسه ورکړي، د مطالعې په مرسته يې بيرته تر لاسه کولای سي. که روغتيا له لاسه ورکړي، د درملو په مرسته يې بيرته ترلاسه کولای سي، خو که وخت له لاسه ورکړي، بيا يې هيڅکله نه سي تر لاسه کولای. ځکه هرشی چي يو ځل ولاړ سي، ښايي بيا تر لاسه سي، خو کله چي وخت تېرسي، بيا هيڅ وخت نه راګرځي.لوی ځښتن فرمايلي دي:

---

(۱۳)- دريغ از اين مسلمانی،۱۴۰ مخ.

(۱۴)- پورتنی مأخذ،۱۴۱ مخ.

﴿ يُقَلِّبُ ٱللَّهُ ٱلَّيۡلَ وَٱلنَّهَارَۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَعِبۡرَةٗ لِّأُوْلِي ٱلۡأَبۡصَٰرِ ﴾

[ النور: ٢٤/٤٤]

**ژباړه: الله شپې او ورځي يوه په بله پسې اړوي را اړوي(په شپو او ورځو کي په اوږدوالي او لنډوالي سره او په تلو او راتلو سره پرله پسې بدلون او اوښتون راولي). په يقين سره (د ربوبيت) په دغو دلايلو او نخښو کي هغو کسانو لره (د الله پر قدرت او وحدانيت باندي) عبرت او نصيحت دی چي د ژورليد(بصيرت) خاوندان دي.**

**ابن حجر رحمة الله عليه فرمايلي دي:**

" مَنِ اسْتَعْمَلَ فَرَاغَهُ وَصِحَّتَهُ فِي طَاعَةِ اللَّهِ فَهُوَ الْمَغْبُوطُ وَمَنِ اسْتَعْمَلَهُمَا فِي مَعْصِيَةِ اللَّهِ فَهُوَ الْمَغْبُونُ لِأَنَّ الْفَرَاغَ يَعْقُبُهُ الشُّغْلُ وَالصِّحَّةُ يَعْقُبُهَا السَّقَمُ " (۱۵).

**ژباړه: چا چي خپل فراغت او روغتيا د لوی څښتن په اطاعت کي وکارول، هغه نېکمرغه دي او چا چي په ګناه کي وکارول، هغه بدمرغه دي. ځکه تر وزګارۍ وروسته بوختيا راځي او تر روغتيا وروسته ناروغي راځي.**

**موږ له خپل فراغت څخه ګټه نه اخلو، کار نه کوو او کله چي وخت له لاسه ورکړو، بيا افسوس کوو او پښېمانه کېږو. يا کار نه کوو او خپل عقل او پوهه او زموږ د بدن خدای راکړي نور نعمتونه په کار نه اچوو او ځان ته تکليف نه ورکوو، خو چي بيا يې په پايله کي د ډول ډول بدمرغيو سره لاس او ګرېوان سو، نو له خدايه ګيله کوو چي ولي يې موږ ته روزي او نيکمرغي نه ده را په برخه کړې؟!**

**د شپې او ورځي ګرځېدل ، د وخت د تېرېدو لامل ګرځي. هر څه چي کول غواړئ، همدا اوس يې په موجود وخت کي تر سره کړئ. ځکه تېر سوی وخت داسي دی، لکه توکلي ناړي او توکلي**

---

(۱۵)– فتح الباري، ۱۱/ ۲۷۶ مخ.

ناړي بیا نه راګرځي. عمر خیام پر خپل تېر سوي وخت داسي افسوس کوي:

افســـوس کـــه نامــه جـــوانی طـــی شـــد
وان تـــازه بهـــار زنـــدگاني دی شـــــد
آن مـــرغ طـــرب کـــه نـــام او بـــود شـــباب
افســوس نـــدانم کـــه کـــی آمـــد وکـــی شـــد

انسان باید هر وخت دا زړه ته واچوي چي تېر سوی وخت بیا نه راګرځي . هر څه چي کول غواړئ، باید همدا اوس یې ترسره کړئ. ځکه د وخت په تېرېدو سره افسوس کول هیڅ ګټه نه لري. تېرسوی وخت بیا په هیڅ صورت سره نه راګرځي او نه څوک په مال او شتو سره د وخت یوه شېبه رانیولای سي.

یو ځل کوچنیوالی راځي، تر هغه وروسته ځواني او بیا زړښت او دا هره دوره خپل وخت لري او هیڅ یوه دوره په تېره ځواني بیرته هیڅ نه ګرځي. حضرت خوشال بابا رحمة الله علیه پر خپله تېره ځواني داسي افسوس کوي:

نــــه خوشـــــال وای نــــــه ختـــک وای
مســـــــلی وای خـــــو ځـــــــواني وای

ابو العتاهیة په ډېر افسوس سره ویلي دي:

الا لَیـــتَ الشّـــبابَ یَعُـــودُ یَوْمـــاً
فـــأُخبِرَهُ بِمَـــا فَعَـــلَ المَشـــیبُ

ژباړه: ای کاش یوه ورځ ځواني بیرته را وګرځي، څو هغه خبره کړم چي زړښت څه راسره وکړه!

د وخت له هري شېبې څخه ګټه واخلئ. وخت په باور نه دی، هر وخت چي ولاړ سي، بیا نه راګرځي. په ژوند کي هر شی یو قیمت او بیه لري، ولي وخت داسي شی دی چي هیڅ بیه نه لري چي انسان یې رانیسي او نه د رانیولو شی دی.

حسن بصري رحمة الله علیه فرمایي:"هره ورځ چي سهار کیږي د حق له لوري یو ناره کوونکی ناره کوي چي : ای د آدم اولادې زه نوی پیدا سوی یم او ستا پر کړنو باندي شاهد یم، نو له ما څخه ګټه واخله او د خپل آخرت لپاره یو څه زېرمه (ذخیره) کړه، ځکه زه چي ولاړ سم بیا د قیامت تر ورځي نه راګرځم"[١٦].

وایي چي یو وخت یوه سړي ستر عالم ابن جوزي رحمة الله علیه ته وویل: "راسه یو څو خبري وکړو (یعني بې هوده خبري وکړو)".

ابن جوزي رحمة الله علیه په ځواب کي ورته وفرمایل: "سمه ده، خو په دې شرط چي ته به لمرراته دروې(یعني زما لپاره به وخت بیرته را ګرځوې)".

په ژوند کي ډېر شیان داسي دي چي که یو ځل یې تاسي له لاسه ورکړئ، نو ښایي بیرته یې تر لاسه کړئ،خو که وخت او عمر یو ځل له لاسه ورکړئ، بیا یې په هیڅ ډول نه سئ تر لاسه کولای. ځکه دا دومره ارزښتناکه شی دی چي هیڅ بیه نه لري . نو له وخت څخه مو ګټه واخلئ او یوه شېبه بې ځایه مه تېروئ.

آنکه مصرف میکند پیدا برای سیم وزر
کاش نقد وقت را هم مصرفی پیدا کند

## ځان په کار اخته کړئ، بې کاره مه کښېنئ!

پښتانه وایي: " له بې کاره خدای بې زاره". همدا راز وایې: "بې کاري د اوو ناروغیو مور ده". په فارسي کي متل دی: "مرد بی کار ، یا شود دزد یا شود بیمار". تر څو چي مو په وسه وي، کار وکړئ له وخت څخه ګټه واخلئ. د ژوند یوه شېبه بې ځایه مه تېروئ. له وزګاری څخه ځانونه وژغورئ. بې کاري له یوې خوا د شیطان

---

(١٦)- د محمد نصر الدین محمد عویضة فصل الخطاب في الزهد والرقائق والآداب، ٦٠٩/٣مخ.

ځاله ده. ځکه هر کله چي بې کاري پيل سي، نو پوه سئ چي د ګناه او معصيت دروازې هم ستاسي پر مخ پرانيستل سي. او له بلي خوا د يوه ملت د وروسته پاته کېدو لامل ګرځي، بلکي د ملت فرهنګ او کلتور ته هم دروند زيان رسوي.

بې کاره ناسته او ګرځېدل بې ګټې خبري او پټي (ورقي) کول يا ټلوېزيون او نور کتل نه يوازي دا چي د چا وخت ضايع کوي، بلکي ستاسي تر څنګ نورو ته هم تاوان رسوي.

جنـــون بيکـــار نـــه تـــوان زيســـتن
آتشـــم تيـــز ســـت و دامـــان مـــی زنـــم

بې کاري همت او جرئت له منځه وړي او انسان د پر مختللي ژوند څخه ليري او وروسته ساتي. انسان بايد هرو مرو او پر له پسې کار وکړي.

بې کاري انسان له خپلي موخي څخه ليري کوي، د هغه ذهن، دماغ ټول په بې معنا فکرونو او چورتونو بوختوي او پای يې په بېلا بېلو ناروغيو يې اخته کوي. تر بې کاري ښه دا ده چي انسان د کور په کارونو بوخت سي، د بازار په کارونو ځان لګيا کړي، مطالعه وکړي، يو څه وليکي، نورو ته درس ورکړي، کور پاک کړي.... هر کار وکړي، خو ځان دي بې کارۍ ته نه ورکوي. مطلب کوچنی کار وي که غټ يا لږ ځان په بوخت کړي. وايي: " تر بې کاري بې ګاري لا ښه ده".

امام بخاري او مسلم رحمة الله عليهما روايت کړی دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمايي:

« عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ صَدَقَةٌ ». قَالُوا: فَإِنْ لَمْ يَجِدْ ؟ قَالَ : « يَعْمَـــلُ بِيَدِيهِ فَيَنْفَعُ نَفْسَهُ وَيَتَصَدَّقُ ». قَالُوا: فَإِنْ لَمْ يَفْعَلْ أَوْ لَمْ يَسْـــتَطِعْ؟ قَالَ: « يُعِينُ ذَا الْحَاجَةِ الْمَلْهُوفَ ». قَالُوا : فَإِنْ لَمْ يَفْعَـــلْ ؟ قَـــالَ:

« يَأْمُرُ بِالْمَعْرُوفِ ». وليُمْسكُ عَنِ الشَّرِّ فَإِنَّهَا لَهُ صَدَقَةٌ "»[۱۷].

ژباړه: پر هر مسلمان باندي خيرات لازم دی. صحابه وو پوښتنه ځني وکړه چي ای د الله رسوله! که يې څوک ونه مومي؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم وفرمايل: په خپل لاس دي کار وکړي، په دې توګه هم ځان ته ګټه رسوي، هم خيرات کوي. صحابه وو وويل: که کار ونه کړي يا يې په وس نه وي ؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته وفرمايل: د اړ بې وسه مظلوم سره دي مرسته وکړي. صحابه وو وويل: که دا هم ونه سي کولای؟ رسول الله وفرمايل: نو بيا دي ښه کارونه تر سره کړي او له بده کاره دي خپل ځان وساتي او دا د ده لپاره صدقه ده.

په دغه حديث کي رسول الله صلي الله عليه وسلم له صحابه وو څخه لومړی د کار غوښتنه کړې ده او بيا يې نوري چاري ورته فرمايلي دي له دې حديث څخه د کار ارزښت او اهميت او د بې کارۍ او وخت ضايع کولو آفتونه په ځر ګنده توګه ښکاري.

رحمان بابا رحمة الله عليه څه ښه فرمايلي دي:

که دي ډېر عمر په کار وي غفلت مه کړه
په ويده باندي سل کاله يو زمان دی

امام بيهقي رحمة الله عليه د عبدالله بن الزبير رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چي هغه فرمايي:

"په نړۍ کي تر ټولو ډېر بد شی بې کاري ده"[۱۸].

او دا يې ځکه ويلي دي، چي بې کاري وخت ضايع کوي او د وخت ضايع کول د خپل ځان ضايع کول دي.

يو شاعر بيا وايي:

---

(۱۷)- بخاري، کتاب الزکات، باب عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ صَدَقَةٌ،۱۴۴۵ حديث. او مسلم، کتاب الزکات، باب بيان أن اسم الصدقة يقع على كل نوع من المعروف، ۲۲۲۲/ ۱۰۰۸ حديث.

(۱۸)- د مسلمان په ژوند کي د وخت ارزښت، ۴۸مخ.

ای خردمند سر متاب از شغل
تا توانی فراغ را مگزین
که به شغل اندر است محنت تن
به فراغ اندر است آفت دین

حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه فرمايلي دي:

" ان القوة فی العمل "(۱۹).

ژباړه: ځواکمني په کار او هڅه کي ده.

لقمان حکيم رحمة الله عليه بيا فرمايلي دي:

" إن كانَ الشُّغُلُ مَجهَدَةٌ فَالفَراغَ مَفسَدَةٌ ".

ژباړه: که کار او هڅه زحمت وي، نو بې کاري بيا د فساد سرچينه ده.

په تاريخ کي راغلي دي چي حضرت عمر رضي الله عنه چي به کله کوم مخور سړی وليدی، نو ژر به يې د هغه شخه د هغه د کسب او کار په اړه پوښتنه وکړه چي څه کار کوي؟ کله چي به هغه ورته وويل چي هيڅ کار نه کوم، نو بيا به يې له نظره ولوېدی.(۲۰).

او دا ځکه چي هغه پوهېدی چي بې کاره انسان وخت ضايع کوي او د وخت ضايع کول د ملت د وروسته پاته کېدو او ضايع کېدو لامل ګرځي.

امام ابن جوزي رحمة الله عليه فرمايلي دي:

"زه د بې کارانو له مجلس څخه خدای ته پنا غواړم".

د حضرت منصور حلاج رحمة الله عليه څخه يو چا پوښتنه وکړه چي يو څه نصيحت راته وکړه. هغه ورته وويل:

" ځان بوخت ساته. که نه زمانه به تا په ځان بوخت کړي. يعني

---

(۱۹)- پرتوی از کلام امير المومنين عمر، ٦٨ مخ.

(۲۰)- د مسلمان په ژوند کي د وخت ارزښت، ۴۹ مخ.

بېلا بېلي غوښتني به درڅخه وکړي"[۲۱].

حضرت عمر رضي الله عنه به تل د خطبې په پای کي دا دعا کوله:

"اللهم لا تَدَعْني في غَمْرة، ولا تَأخُذْني في غرة، ولا تَجْعلــني مـــن الغافِلِين"[۲۲].

ژباړه: ای الله ! ما د ستونزي په وخت کي يوازي مه پرېږده او ما د غفلت په حالت کي مه نيسه او ما د غافلو کسانو له ډلي څخه مه ګرځوه.

امام ابو الوفاء علي بن عقيل حنبلي رحمة الله عليه يو سترعالم دی چي يو ډېرسترکتاب يې د" الفنون "په نامه ليکلی دی. نوموړی کتاب پر اتو سوو ټوکو مشتمل دی او ويل کيږي چي ددې په شان کتاب د آدم له پيدايښت څخه تر اوسه چا نه دی ليکلی او نه به يې څوک تر قيامته وليکي. نوموړي عالم فرمايلي دي:

" اوس زه اتيا کاله عمر لرم ، خو د همت، عزم او د وخت څخه د ګټي اخيستو په اړه داسي يم، لکه د شلو کالو چي وم" او ويلي يې دي:

"زه ستاسي په شان ډوډۍ نه خورم". (يعني وخت نه لرم چي ستاسي په شان ډوډي وخورم). هغه ته وويل سول چي تاسي څنګه ډوډي خورئ؟ هغه وويل:"زه پر وچه ډوډۍ اوبه اچوم، څو د اوړو په شان پسته سي او بيا يې ژر ژرخورم ، څو وخت مي بې ځايه تېر نه سي"[۲۳].

مسلمانانو په دې ډول سره پر نړۍ حکومت کړی دی. فکر وکړئ موږ او تاسي د دوی په شان څومره کار کړی دی؟

له بده مرغه بايد ووايو چي نن ورځ زموږ ډېرځوانان په بې کاري

---

(۲۱)- تعليم المتعلم و آداب المتعلمين،٦٧مخ.

(۲۲)- غرر الخصائص الواضحة، ۸۱/۱ مخ.

(۲۳)- دريغ از اين مسلماني،۱۴۸مخ.

کي شپې سبا کوي. ځوانان د دې لپاره چي وخت يې تېر سي، د شپې تر ناوخته پوري په لاپو شاپو او په فيسبوک او نورو تېروي او د ورځي تر نهو او لسو بجو پوري په خوب تېروي او تر هغه وروسته هم په بې ګټو کارونو کولو سره خپل ارزښتناک وخت عبث تېروي.

ښځي مو خپل ډېر وخت د يو بل په غيبت کولو، بې معنا مجلسونو او يا په ټليفون کي په حال ويلو او چای څښلو تېروي. نارينه مو خپل ډېر وخت د فېسبوک په کتلو، د يو بل په غيبت کولو، په دکانو کي په چای څښلو او داسي نورو بې ګټي او ناوړو کارونو تېروي. اوس نو تاسي فکر وکړئ چي د رسول الله صلي الله عليه وسلم امت بايد خپل وختونه په داسي کارونو تېر کړي ؟ اسلامي امت په دې ډول پر نړۍ حکومت کړی دی؟ صحابه وو په داسي کارونو کولو سره اسلام د نړۍ تر ګوټ ګوټ پوري رسولی دی؟

زموږ مشران، لکه بوعلي ابن سينا، بايزيد روښان، شيرشاه سوري، مولانا جلال الدين بلخي، مولانا عبدالرحمن جامي، خوشال خا ختک، حاجي ميرويس خان نيکه، احمدشاه بابا، وزير محمد اکبر خان، سيد جمال الدين افغاني، محمد ګل خان مومند، لوی ښوواند علامه حبيبي او ډېر نور په دې ډول د سترو کارنامو او خدمتونو مصدر سوي او نوماند سوي دی؟

د وخت قدر وکړئ او له هري شېبې څخه ګټه واخلئ. تاسي دا مه هېروئ چي د رسول الله صلي الله عليه وسلم امت ياست او تاسي ته اسلام د امانت په توګه سپارل سوی دی. بس ده په سوو سوو کلونو مو خوب وکړ، نور د غفلت له خوبه پاڅئ او له دې اوسني ذلته د اسلامي خلافت په لټه کي ځانونه لوړو مقامونو ته ورسوئ.

## وخت لکه سره زر

د پښتنو متل دی، وايي: " وخت لکه سره زر". يا وايي: "وخت سره زر دي". په عربي کي وايي: "الوقت من ذهب". (وخت هم سره

زر دي). انګرېزان وايي: "Time is Money" (وخت پيسې، شته، زر دي). ځينو علمای کرامو پر "الوقت من ذهب" باندې اعتراضونه او نيوکې کړي دي ، وايي دا د انګرېزانو او لوېديځوالو متل دی. ځکه چې دوی مادي پال دي او زر دوی ته هر څه دي، نو وخت د زرو غوندې ګڼي. خو موږ مسلمانان وايو چې وخت تر سرو زرو هم قيمتي او ارزښتمن دی، ځکه وخت ته هيڅ بيه نه سي ايښوول کېدای . او وايي چې د مسلمانانو په نزد وخت ګر دسره ژوند دی.

زما په اند دا سمه خبره ده چې وخت تر زرو ډېر ارزښت لري، ځکه لکه دوی رحمهم الله چې فرمايي سره زر په پيسو رانيول کيږي او په بازار کې پلورل کيږي، خو وخت نه خرڅيږي او نه رانيول کيږي.

اما تر کومه ځايه چې زموږ پښتنو د متل په اړه زه پوهېږم د دغه متل مطلب دانه دی چې ګواکې وخت د سرو زرو په کچه دی.

زموږ ټول متلونه د دغه متل په شمول زموږ د اولنو غوره، ارزښتناکې او تللې او پخې، زريني او د مرغلرو غوندې ويناوې دي، چې لوی او غوره مقاصد پکښې نغښتې دي.

د دې متل موخه او معنا داده چې وخت د انسان پانګه او ارزښتناک شته باله سي. نو لکه چې انسان خپلو تر ټولو ښو او ارزښتناکو شتو ته زښته زياته پاملرنه کوي، په تېره په هغو کې سره زر ډېر ښه ساتي او حفاظت يې کوي او پام ورته کوي ، وخت ته هم بايد دغسې ټينګ پام وسي او په تپاک او احتياط سره وساتل سي، په پوهه او تدبير سره ګټه ځنې واخيستل سي او د بې ځايه استعمال او د ضايع کېدو مخه يې ونيوله سي او لکه انسان چې خپله پانګه په ښو او ګټورو چارو کې په کار اچوي او پر ښو لارو يې لګوي، همدغسې وخت هم په کار واچوي او ويې لګوي.

بايد ووايو چې وخت د هغو کسانو لپاره سره زر دي چې په اهميت او ارزښت يې پوهيږي. ځکه که چيري يوه عادي انسان ته چې هيڅ

د وخت په اهميت نه پوهيږي او نه يې قدر کوي وويل سي چي وخت سره زر دي ، نو ښايي هغه ستاسي پرخبره وخاندي. خو هغه کسان چي د وخت قدر کوي او په ارزښت يې پوه دي، د هغو لپاره وخت ترسرو زرو هم ډېرارزښت لري.

حارث محاسبی رحمة الله عليه وايي:

" په خدای مي دي قسم وي،که چيري وخت په شتو رانيول کېدای، ما خپله ټوله شتمني د وخت د رانيولو لپاره لګول او غوښتل مي چي د مسلمانانو په چوپړکي اوسم او په دې معامله کي مي د تاوان هيڅ پروا نه کوله". هغه ته وويل سو ل چي تا له چا څخه وخت رانيوی؟ هغه ځواب ورکړ: " له هغو کسانو څخه چي بې کاره دي او خپل عمر بې کاره تېروي" (۲۴).

نو له دې سرو زرو څخه ښه او وړګټه واخلئ او مه پرېږدئ چي پر ته له ګټي اخيستو څخه مو بير ته له ژونده ولاړ سي.

## وخت غنيمت وګڼئ!

وخت غنيمت وګڼئ. او له هري شېبې څخه يې ګټه واخلئ. ځکه که يو ځل وخت ولاړ سي، بيا نه راګرځي.

فرصت له لاسه مه ورکوئ. يوه شېبه بې کاره مه تېروئ. هرکله چي فارغه وخت په لاسه درغی، ګټه ځني واخلئ. ځکه ځيني وختونه داسي وي چي انسان کار کول غواړي، ولي دومره وخت نه وي چي دی يو څه پکښي وکړي. په دې اړه لوی څښتن انسانانو ته داسي خطاب کوي:

﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تُلْهِكُمْ أَمْوَٰلُكُمْ وَلَآ أَوْلَـٰدُكُمْ عَن ذِكْرِ ٱللَّهِ ۚ وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ فَأُوْلَـٰٓئِكَ هُمُ ٱلْخَـٰسِرُونَ ۝٩ وَأَنفِقُواْ مِن مَّا رَزَقْنَـٰكُم مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِىَ أَحَدَكُمُ ٱلْمَوْتُ فَيَقُولَ رَبِّ لَوْلَآ

(۲۴)- دريغ از اين مسلمانی، ۱۴٦مخ.

أَخَّرْتَنِيٓ إِلَىٰٓ أَجَلٖ قَرِيبٖ فَأَصَّدَّقَ وَأَكُن مِّنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ﴿١٠﴾ ﴾
[ المنافقون: ٦٣/٩-١٠]

**ژباړه: ای مومنانو! ستاسي مالونه او اولادونه دي تاسي د الله تعالی له یادولو څخه نه بې پروا کوي . او څوک چي داسي وکړي(مالونه او اولادونه يې له الله تعالی څخه غافله کړي) نو هغه کسان تاوانیان دي. او له هغو مالونو څخه چي موږ تاسي ته درکړي دي، لګښت کوئ.( د الله په لار کي يې ولګوئ) مخکي له دې چي تاسي ته مرګ راسي او بیا ووایاست: ای خدایه! کشکي مي تر يوې نژدې نېټې اجل وروسته سي ، څو خيراتونه وکړم او د صالحانو خلکو له ډلي څخه سم.**

**شاعر څه ښه ویلي دي:**

لا تقـــلْ في غـــدٍ أتـــوبُ لعـــل

الغد يأتي وأنــت تَحــتَ التــرابِ

**ژباړه: مه وايه چي سبا توبه کاږم، ښايي سبا راسي او ته تر خاوري لاندي يې.**

**تېره زمانه هېره کړئ، د راتلونکي په اړه فکر مه کوئ، کوم وخت چي دا نن لرئ، له هغه څخه ګټه واخلئ او په کار يې واچوئ.**

**رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي:**

« اغْتَنِمْ خَمْسًا قَبْلَ خَمْسٍ: شَبَابَكَ قَبْلَ هَرَمِكَ، وَصِحَّتَكَ قَبْلَ سَقَمِكَ، وَغِنَاكَ قَبْلَ فَقْرِكَ، وَفَرَاغَكَ قَبْلَ شُغْلِكَ، وَحَيَاتَكَ قَبْلَ مَوْتِكَ »[۲۵].

---

**(۲۵)- دغه حدیث حاکم په المستدرک کي تخریج کړی دی، د حدیث شمېره، ۷۸۴٦ ده او حاکم يې په اړه ويلي دي چي دا حدیث د شیخینو پر شرط صحیح دی، خو نه يې دی تخریج کړی. ذهبي هم د بخاري او مسلم د شرط سره سم بللی دی او الباني هم په** صحيح الترغيب والترهيب **او** صحيح الجامع الصغير وزياداتـــه **کي صحیح بللی دی.**

ژباړه: پنځه شیان ترپنځو شیانو دمخه غنیمت وګڼئ: ځواني تر زړښت دمخه. روغتیا تر ناروغۍ دمخه. شتمني تر مسکنت دمخه. فراغت تربوختیا دمخه او ژوند ترمرګ دمخه.

لوی څښتن سبحانه چي هر انسان ته دا ستر نعمت ورکړی دی، تر څنګ یې فراغت هم ورکړی دی، خو ډېر انسانان د وخت د فراغت په اړه تېروتلي دي.

موږ او تاسي په ژوند کي ډېر فارغه وختونه لرو او کولای سو چي له هغه څخه ګټه واخلو، خو دا په هغه صورت کي کیږي چي په عمل کي کار وکړو او له فارغو وختونو او شپېو څخه ګټه واخلو. هیڅکله په دې تمه مه اوسئ چي تاسي ته باید یو ځانګړی وخت پیدا سي بیا کار کوئ، بلکي هر وخت چي بې کاره وخت په لاس درغی، هغه غنیمت وګڼئ او په کار یې ولګوئ. یوه شاعر څه ښه ویلي دي:

در زندګی بکوش همین دم غنیمت است
زیرا که روز مرګ بکس آشکارا نیست

حضرت مولانا اعزاز علی رحمة الله علیه فرمایلي دي:

" کومه زمانه چي تېره سوه، هغه خو ختمه سوه، د هغه یادول عبث کار دی او راتلونکي زمانې ته هیله درلودل، یوازي یوه هیله ده. ستا په اختیار کي هغه لږ وخت دی کوم چي اوسمهال پر تا تیریږي، بس د هغه قدر وکړه"(۲۶).

دغه شېبې چي همدا اوس ستاسي په اختیار کي دي، غنیمت وګڼئ او کار ځني واخلئ. ځکه په سبا څوک نه پوهیږي چي زه به یم که نه. په دې اړه یوه شاعر ویلي دي:

من نمی ګویم زیان کن یا بفکرسود باش
ای ز فرصت بی خبر در هر چه باشی زود باش

(۲٦)–تحفة الطلباء و العلماء،۱٦۳مخ.

## د نن کار سبا ته مه پرېږدئ

د نن کار سبا تـه مـه پرېږدئ. سبا داسـي کلمـه ده چـي انسـان تېرباسي او ډېر ژر يې بير ته پښېمانه کوي. که متوجې سو، نو راتـه ښکاره به سي چي د عالمانو او پوهانو پـه قاموس کـي هيڅ د سبا کلمه نه مونډل کيږي، خو د بدمرغو او وروسته پاتو وګړو قاموس بيا د سبا له کلمې ډکه جوړ وي. ځکه پر ته له لوی ښتن څخه بل هيڅوک نه پوهيږي چي سبا به څه کيږي؟ هر څومره چي مو په وسه وي د نن کار همدا نن پای ته ورسوئ او سبا ته يې مه پرېږدئ.

شاعر وايي:

چـي يـو ځـل دي واچـاوه لاس ويـو کـار تـه
که د شپې خلاصيږي مې پرېږده سهار ته
پـه جرئـت او توکـل يـې پـر مـخ بيايـه
بـری سـتا دی کـه لـرې صـبر وقـرار تـه

د رسول الله صلي الله عليه وسلم صحيح حديث دی:

« إِنْ قَامَتِ السَّاعَةُ وَفِي يَدِ أَحَدِكُمْ فَسِيلَةٌ، فَإِنِ اسْـتَطَاعَ أَنْ لاَ تَقُومَ حَتَّى يَغْرِسَهَا فَلْيَغْرِسْهَا»(۲۷).

ژباړه: که (قرار وي چي) قيامت سي او له تاسي څخه د کوم يوه په لاس کي د خرما کوچنی نهال وي، که کولای سي چي تر قيامت دمخه هغه کښېنوي، نو بايد کښې يې نوي.

هسي خو هر چا ته څرګنده ده چي تر قيامت وروسته دا ونه د چا په درد نه خوري، نو موږ ولي دا کار وکړو؟ ځواب دادی چي له دې حديث شريف څخه د رسول الله صلي الله عليه وسلم موخه د وخت قدر کول او بې ځايه نه ضايع کول دي او د کار په بدل کي د نيکی ژمنه ده.

حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه حضرت ابوموسی اشعري ته

---

(۲۷) - الادب المفرد، باب اصطناع المال، ۴۸۶ حديث.

وليکل:

" أَنْ لَا تُؤَخِّرُوا عَمَلَ الْيَوْمِ لِغَدٍ ".

ژباړه: د نن کار سبا ته مه پرېږدئ.

او د دغه ليک په بله برخه کي يې فرمايلي دي:

" فَإِنَّكُمْ إِذَا فَعَلْتُمْ ذَلِكَ تَدَارَكَتْ عَلَيْكُمُ الْأَعْمَالُ، فَلَمْ تَدْرُوا أَيُّهَا تَأْخُذُونَ فَأَضَعْتُمْ!" (۲۸).

ژباړه: ځکه که د نن کار سبا ته پرېږدئ، نو کارونه به در باندي ډېر سي او هغه وخت به بيا نه پوهېږئ چي کوم يو ترسره کړئ. په پايله کي اړ کېږئ چي يو څه کارونه پرېږدئ.

يوه شاعر بيا ويلي دي:

ولا أدخّر شغل اليوم عـــن كســـل

إلى غـــدٍ إنّ يـــوم العـــاجزين غـــدُ

ژباړه: د نن کار د ټمبلۍ له امله سبا ته نه ذخيره کوم، ځکه د کمزورو خلکو ورځ سبا باله سي.

ويل کېږي چي عمر بن عبدالعزيز رحمة الله عليه د خپل خلافت په وخت کي فرمان صادر کړ چي د نن ورځي کار بايد سبا ته پاته نه سي. حضرت عمر رحمة الله عليه ته عرض وسو چي ای امير المومنينه! دا چي د هري ورځي کار په هم هغه ورځ سر ته ورسول سي، ډېر درونډ او ستړی کوونکی تماميږي. که يو څه يې بلي ورځي ته پاته سي خير دی ، هيله ده چي په دې برخه کي لږ د آسانتيا څخه کار واخلئ. حضرت عمررحمة الله عليه ځواب ورکړ: کله چي په تاسي باندي د يوې ورځي د کارونو تر سره کول ډېر درانه تماميږي او دا هيله کوئ چي لږ د آسانتيا څخه کار واخلم، که د دوو ورځو کار پر تاسي باندي پاته سي، په دې صورت کي بيا څه کوئ؟ لنډه دا چي

---

(۲۸)- پرتوی از کلام امير المؤمنين عمر،۲۵ مخ.

د مامورينو غوښتنه يې ونه منل او په دې باندي يې ټينګار وکړ چي د نن ورځي کار بايد سبا ته پاته نه سي.[۲۹].

بيت:

کــار امــروز بفــردا نگــذاری زنهــار
کـه چـو فـردا برسـد نوبـت کـار دگرسـت

وايي چي يو پاچا ته چي خپله پاچهي يې له لاسه ورکړې وه ، وويل سول: " څه لامل وو چي تا پاچاهي له لاسه ورکړه؟ ". هغه ورته وويل: " د نن کار سبا ته پرېښوولو زما واکمني له منځه يووړه".[۳۰].

بيت:

ماندم که خار از پاکشم، محمل نهان شد از نظر
يک لمحه غافل بودم و صد ساله راهم دور شد

د نن کار سبا ته پرېښول ډېر تاوانونه رامنځته کوي او تل د پښېمانۍ لامل ګرځي. وايي چي ژوليوس امپراطور د هغه خط په ويلو کي چي ده ته لېږل سوی وو، ځنډ وکړ. خو کله چي د روم د مشرانو مجلس ته حاضرسو ، هلته يې د خط د ځنډېدو له امله خپل ژوند له لاسه ورکړ.[۳۱].

حضرت شاه ولی الله دهلوي رحمة الله عليه فرمايلي دي:

" د مسلمانانو پر مشر واجب دی چي د نن ورځي هغه کار چي تر سره کولو ته يې اړتيا ده سبا ته پرې نه ږدي "[۳۲].

---

(۲۹)- د حضرت عمر بن عبدالعزيز عدالتي تګلاره، ۵۵ مخ.د سيرة عمر بن عبدالعزيز،۵۵ مخ په حواله.

(۳۰)- د اسلامي حاکمانو اخلاق او صفات ، ۱۸۲مخ. د الشهب اللامعة ،۲٦۲مخ په حواله.

(۳۱)- همت بلند دار، ۹۱ مخ. د سبيلک الی الشهوة و النجاح، ۱۰٦ مخ په حواله.

(۳۲)- داسلامي حاکمانو اخلاق او صفت ، ۱۸۲مخ. د حجة الله البالغه، ۱/۴٦ مخ په حواله.

د نن کار همدا نن تر سره کړئ او د خپل وخت څخه ګټه واخلئ. پام کوئ چې د سبا کلمه مو تېر نه باسي، ځکه ډېر سترکسان د سبا پر کلمه د باور کولو په نتیجه کي پښېمانه سوي دي. هرڅه چې کول غواړئ، همدا نن یې تر سره کړئ.

له همدې امله خو شاعر ویلي دي:

ولا تُرجِ فعلَ الخـــيرِ يومًـــا إلى غـــدٍ
لعـــلَّ غـــدًا يـــأتِي وأنـــت فَقِيـــدُ

ژباړه: د خیر کار د نن څخه سبا ته مه وروسته کوه. ښایي سبا راسي،خو ته به نه یې.

## دا هم د "تسویف" په هکله

تسویف عربي کلمه ده چي له "سوف" څخه اخیستل سوې ده او مشهوره معنا یې ده د یوه کار ځنډول، د کار د کولو په اړه نن او سبا کول.

ډېر خلک د یوه کار د کولو هیله لري، خو د سمدستي ترسره کولو په اړه یې، متردد، اندېښمن او زړه نازړه وي او وایي : په دې نژدې وختو کي سفر کوم، یا پلانی کار کوم، خو نه یې کوي او ځنډوي یې. یا وایي له دې کار څخه هر څه ژر توبه کاږم، خو نه یې کاږي.

په عربو کي د کار د ځنډ او تاخیر په اړه" تسویف" یوه ډېره کارېدونکې اصطلاح ده.

له بده مرغه نن مهال په دې ناوړه عادت ډېر خلک اخته دي. خو له دې عادته ځان ساتل په کار دي، ځکه دا عادت د درواغجنو هیلو او تمو سرچینه، د کار ناروغي، د لوړ همت وژونکی او د مفلسانو دلیل باله سي. نو کله چي د کوم ښه کار په تکل کي سوې، سمدستي یې تر سره کوه، د پښتنومتل دی : "پرښو تلوار، پر بدو تأمل". عرب شاعر وایي:

يا قليـــل المقـــام في هـــذه الـــدنيا
الـــى كـــم يغـــرك التســـويف

ژباړه: ای په دې نړۍ کي د لږ وخت لپاره اوسېدونکې، تر څو به تا د کار ځنډول غولوي.

حسن بصري رحمة الله عليه وايي: "د کار د سمدستي نه کولو او ځنډولو څخه په کلکه ډډه وکړه، ځکه ته دا نن ورځ لرې او سبا ستا په واک کي نه دی"(۳۳).

همداراز فرمايي: "دنيا درې ورځي ده: پرون تېر سو، سبا ښايي ونه ومې، خو نن ورځ ستا ده، نو هر څه چي کوې نن يې وکړه"(۳۴).

عالمان وايي: "د کار تر ځنډولو بل سخت بې برخيتوب نسته".

بله مقوله ده: "د کار ځنډول د شيطان شعار دی، چي د مومنانو په زړونو کي يې اچوي".

نو ای مسلمانه وروره! د خپل عمر غنيمت او په لاس درغلي وختونه سمدستي د الله په طاعت او کار کي ولګوه او د الله د طاعت، د توبې او نورو ښو کارونو له ځنډولو څخه په کلکه ډډه وکړه او په دې چارو کي هيڅ تاخير، سستي او کهالي مه کوه. ته وګوره چي په کار کي ځنډ څومره ډېر خلک وژلي دي او په قبرونو کي پراته دی. په کار کي ځنډ کول داسي تيره توره ده چي سړی د لوی څښتن په طاعت کي د خپل وخت له لګولو څخه غوڅوي او وژني يې، نو ګوره چي د دغي توري له قربانيانو څخه ونه اوسې!

## له حاضر وخت څخه ګټه واخلئ

ابوعلي دقاق نيشاپوري رحمة الله عليه وايي: "وخت هغه دی چي ته پکښي اوسې، نو که ته په دغه وخت کي خوښ يې نو وخت دي

---

(۳۳)- الوقت وأهميته في حياة المسلم، ۱/۱۶۴مخ.
(۳۴)- پورتنی مأخذ، ۱/۱۶۴مخ.

هم ښه اوخوښ دی او که پکښي ناخوښه يې نو وخت دي هم ناخوښه دی".

دا د دې معناور کوي چي وخت همدغه حاضر مهال دی.

دا نن او همدا اوسنی مهال ګردسره ستاسي او ستاسی په واک کي دی او تاسي له هغه څخه د ګټي اخيستلو بشپړ اختيار لرئ، نو کوښښ وکړئ چي له هغه څخه په بشپړ چمتو والي او پوهه او تدبير اعظمي ګټه واخلئ. حضرت عبدالرحمان بابا رحمة الله عليه څه ښه وايي:

دوبـــاره دي راتلـــه نشـــته پـــر دنيـــا
نن دي وار دی که دروغ کړې که رښتيا
هره چار چي تر وخت تېره شي عنقا شي
عنقـــانـــه دی بـــه دام نښـــتی د هيچـــا
تـر ورخ تېـري اوبـه بير تـه نـه جـارووزي
نـه جـاروزي تېـر سـاعت پـه بير تـه بيـا

که له همدې په لاس درغلي وخت څخه استفاده ونه کړئ، نو دا داسي مثال لري، لکه تاسي چي يوه ځای ته د سفر په موخه د موټرانو په کومه اډه کي ولاړ ياست او د موټر کلينر يا ډرېور ستاسي د مقصد ځای ته د تلو ناري هم وهي، خو تاسي نه ورخېژئ يا تاسي پر يوه لويه لاره ، يو ځای ته د سفر په موخه موټر ته د راتلو په هيله او انتظار ولاړ ياست، خو چي موټر راسي تاسي د درېدو لپاره لاس نه ورکوئ او هغه در څخه تېر سي. په دې توګه به پر لويه لاره پاته ياست، موخي ته به نه رسېږئ او په کړاو او حسرت به اخته اوسئ.

او که لږڅه ځير سو نو زموږ دغه ډول کړنه د لوی ښښتن د دې آيتونو تر خطاب او سرزنش لاندي هم راځي:

﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لِمَ تَقُولُونَ مَا لَا تَفْعَلُونَ ۝٢ كَبُرَ

مَقْتًا عِندَ ٱللَّهِ أَن تَقُولُواْ مَا لَا تَفْعَلُونَ ﴿٣﴾ [الصف: ۶۱/۲ – ۳]

ژباړه: ای مومنانو ځله داسي خبري کوئ چي کړنه نه په کوئ. که خبره وکړئ او کړنه په ونه کړئ، نو د لوی ښښتن د ډېر لوی خښم او غوسئ لامل ګرځي.

حسن بن علي څه ښه ویلي دي:

إِذَا مَرَّ بِي يَــوْمٌ وَلَــمْ أَقْتَــبِسْ هُــدًى
وَلَمْ أَسْتَفِدْ عِلْمًا فَمَا ذَاكَ مِنْ عُمْــرِي!

ژباړه: دا چي یوه ورځ راباندي تېره سي او زه په هغې کي هدایت تر لاسه نه کړم او له علمه ګټه پکښي وانه خلم، نو دا ورځ زما د عمر څخه نه ده.

نو بې کاره هیڅ مه کښېنئ، مه پرېږدئ چي د کار د وخت موټېر در څخه ولاړ یا تېر سي، بلکي د وخت له هري شېبې څخه د خپلي دې دنیا او آخرت لپاره یوه توښه برابره کړئ. له ځانه هغه ځوک مه جوړوئ چي نړی ته راسي او تش لاس بیر ته ځني ولاړ سي. بلکي هغه ځوک اوسئ چي هم په دې نړی کي څه پرېږدئ او هم یې د ځان سره یوسئ.

## په چټي کارونو وخت مه ضایع کوئ

وایي ابن جوزي رحمة الله علیه د خپل کوچنیوالي له مهاله پرهېزګاره، متقي او زاهد واوسېد او د خلکو سره یې ډېره ناسته ولاړه له دې وېري نه خوښول چي وخت به یې ضایع سي او په تېروتنو او ښوییدنو به اخته سي، نو په دې توګه یې خپل ځان او وخت له چټي او لایعني کارونو خوندي وساته.

په یاد ولرئ چي بې ګټي کار ته هیڅ زړه ښه نه کړئ. له بده مرغه په نړی کي ډېر کارونه دي چي خلک یې یوازي د خپل وخت د تېرولو (ساعت تېري) لپاره تر سره کوي. وخت د لوی ښښتن یوه لویه عطا او تحفه ده چي تاسي ته یې در کړې ده. که دا تحفه په بې

ځایه کارونو او خبرو باندي له لاسه ور کړئ، په بدل کي به يې بې له حسرت او پښېمانۍ څخه بل څه په لاس در نه سي. نو د بې ګټو خبرو کولو، بې ځایه ناستي ولاړي، ډېر ټلوېزيون کتلو، ډېر انټرنيټ او فيسبوک استعمالولو، ډېرو چایو څښلو، بې هوده او بې معنا ټوکو او خبرو کولو او ډېرپه موبایل او نورو باندي ځان بوختولو څخه ډډه وکړئ، لوی څښتن فرمايي:

﴿ قَدْ أَفْلَحَ ٱلْمُؤْمِنُونَ ۝١ ٱلَّذِينَ هُمْ فِى صَلَاتِهِمْ خَـٰشِعُونَ ۝٢ وَٱلَّذِينَ هُمْ عَنِ ٱللَّغْوِ مُعْرِضُونَ ۝٣ ﴾ [الصف: ۶۱/۲ – ۳]

ژباړه: په رشتيا چي ايمان راوړونکي بريالي دي. دا هغه کسان دي چي په خپل لمانځه کي عاجزي کوي او هغه کسان دي چي له چټي (، باطلو او هغو) خبرو او چارو څخه (چي ګناه پکښې وي) مخ اړوي.

رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمايلي دي:

«مِنْ حُسْنِ إِسْلَامِ الْمَرْءِ تَرْكُهُ مَا لاَ يَعْنِيهِ»(۳۵).

ژباړه: د يوه انسان د اسلام د ښېګڼو او د هغه د ايمان د بشپړ تيا له جملې څخه د هغو خبرو او چارو پرېښوول دي چي لغو او بې ګټې وي او په ده اړه نه لري.

ابن رجب حنبلي رحمة الله عليه په خپل کتاب "جَـــامِعِ الْعُلُـــومِ وَالْحِكَمِ "کي د دغه حديث په شرح کي وايي: د دې حديث معنا داده چي د انسان د اسلام د ښه والي نخښه او تقاضا داده چي هغه خبري او کړني پرېږدي چي په ده او د ده په موخه او مطلب اړه نه لري او پر هغو خبرو او کړنو بسنه وکړي چي د ده په موخه او مطلب اړه ولري او کله چي د انسان اسلام نېک سي، نو ټول محرمات، مشتبهات، مکروهات او فضول او نا اړيني خبري پرېږدي.

---

(۳۵)- ترمذي، كتاب الزهد، باب فيمن تكلم بكلمة يضحك بها الناس، ۲۳۱۷ حديث

عبد الرحمن مبارکپوري په "تحفة الأحــوذي بشـــرح جـــامع الترمذي" کي وايي: د (مَا لاَ يَعْنِيهِ) حقيقت دادی چي د قول، فعل، نظر او فکر له پلوه د چا په ښه نه وی او نه ور سره ښايي او نه په ديني او دنيوي چارو کي اړتيا ورته لري او نه د لوی څښتن د رضا په لار کي ګټه ور رسوي او ژوند يې له هغو پر ته هم شونی وي او کېدای سي بې له هغو هم ژوند ته دوام ورکړي، چي دا ټول زياتي او اضافي افعال او اقوال په بر کي نيسي.

په اخلاق اسلامي نومي کتاب کي ليکي: "د اسلام سپېڅلي دين په زياتو هغو اوامرو او نواهيو کي چي صادر کړي يې دي، په حقيقت کي د وخت ارزښت او اهميت په پام کي نيولی دی او هر کله چي له چټي خبرو او کارونو او د وخت له تلفېدو څخه ليري اوسېده د ايمان له نخښو څخه معرفي کوي په حقيقت کي په ډېره حکيمانه توګه د هغو بې موخو او بې هدفو انسانانو په وړاندي مبارزه کوي چي په پرله پسې توګه يو بل ته وايي چي راځئ ساعت تېر کړو !! يعني خپل عمر ضايع کړو. دغه کسان له ډېري ناپوهۍ څخه په دې نه پوهيږي چي دغه په اصطلاح ساعت تېری او د وخت تلفول د عمر سره لوبه ده او د ټولني او فرد د هلاکت لامل ګرځي. او دا حکيمانه خبري يې هيري کړي دي چي وايي: مسؤوليتونه تر وخت او مهال زيات دي او مهال هم بې طرفه نه پاته کيږي، بلکي يا د انسان دوست او همکار وي او يا يې سر سخت دښمن وي". (٣٦).

حضرت عمر فاروق رضي الله عنه فرمايلي دي:

"ماته دا خبره عيب معلوميږي، چي په تاسي کي څوک بې هوده او بې کاره ژوند تېروي. هغه نه د نړۍ لپاره کوم کار کوي او نه

---

(٣٦)– اخلاق اسلامي، ۴۳۳ مخ.

د آخرت لپاره "[۳۷].

امام شافعي رحمة الله علیه فرمايلي دي:

"د بې ګټو کارونو څخه د ځان ژغورلو له امله پر زړه باندي يو ډول نور خپريږي". هغه به خلکو ته ويل:

"يوازي کښېنئ، خو وخت مه ضايع کوئ". پر لږ خوړلو باندي به يې ټينګار کاوه او فرمايل به يې: "ډېرخوړل انسان ته خوب ورولي". او د احمقانو له مجلس څخه به يې خلک په ډېر ټينګار سره منع کول.[۳۸].

لقمان حکيم رضوان الله عليه ته چا وويل: ستا دغي پوهې او لوړي پوړۍ ته څنګه ورسېدلې؟ هغه ور ته وويل: په امانت کي مي خيانت نه کاوه، په خبرو کي مي رشتيا ويل او هغه څه مي پرېښوول چي چټي او بې ګټې ول.

له بده مرغه زموږ په ټولنه کي بې کاره کښېنستل يا په بې هوده کارونو وخت تېرول اوس زموږ د فرهنګ برخه ګرځېدلې ده. د نړۍ په پر مختللو هيوادونو کي دقيقې او ثانيې حسابيږي، خو زموږ په ټولنه کي په ساعتو ساعتو وختونه ضايع کيږي، خو د چا چورت لا هم نه وي په خراب او دلته چي تر بل هر څه ارزانه دی يو وخت دی او بل د انسان وينه ده. دا دوه تو کي نن مهال دلته تر هر څه بې ارزښته دي. افغانستان او جاپان په يوه وخت کي آزادي تر لاسه کړې ده. اوس جاپان ټول کارونه ماشيني سوي دي او ماشينونه يې په ثانيو او شېبو کار کوي. خو موږ اتلسمي پېړۍ ته ور ګرځېدلي يو او لا تر اوسه مو د هغو شيانو او وسايلو قدر نه دې پېژندلي چي د نورو هيوادونو د پر مختګ او وړاندي تلو لامل ګرځېدلي دي.

---

(۳۷)- تحفة الطلباء و العلماء،۱۶۳مخ.

(۳۸)- *متاع وقت اور کاروان علم*،۱۶۳ مخ.د تهذيب الاسماء و اللغات، ۱/ ۵۵ مخ په حواله.

وخت او عمر ستاسي تر ټولو غوره پانګه ده. دا پانګه پر پوچو او بې ګټو کارونو مه مصروفوئ. که نه ثمره او پایله به یې هم بې ګټې وي.

بې هوده مي ږیره سپینه کړه پرلاري
نه مي ننګ نه سیالداري سوه دریغ دریغ
بې هوده دي عمر تېر کړ شمس الدینه
نه ملا نه دي خاني سوه دریغ دریغ

یوازي د رنګا رنګ او نوي ماډل موبایلونو په رانیولو، په فېسبوک کي په پوچ ویلو او چټیاتو لیکلو او د ملي خاینانو اوتو بوتو ته د کمینټونو په ورکولو باندي د وخت ضایع کولو، شپه او ورځ د ټلوېزیون په کتلو ، د سر د وېښتانو او ږیري په ډول ډول جوړولو او په ماړه نس خوړلو او څښلو ته ګټور ژوند نه ویل کیږي. ستاسي څخه مي په ډېره عاجزانه توګه هیله ده چي داسي کارونه وکړئ، چي ګټه یې اسلام، مسلمانانو، دې کنډواله هیواد او ستاسي خپل شخصیت ته ورسیږي او په واقعي معنا ستاسي او نورو د وړاندي تلو او روښاني راتلونکي لامل وګرځي.

## وخت نه ذخیره کیږي!

د وخت د تلو او تېرېدو بړغ نه اورېدل کیږي. خو حقیقت دادی چي وخت ډېر ژر او په چټکي سره تیریږي او تل په حرکت کي وي او د ساتلو او زېرمه کېدو شی نه دی. د وخت د تېرېدو چټکتیا د سمندر د څپو تر چټکتیا ډېره چټکه ده. د هر شي مخه نیول کیږي، خو وخت خپل تلو او تېرېدو ته په داسي بېړه پر له پسې دوام ورکوي چي ځینو یې تېزي د باد سره تشبیه کړې ده او ځینو یې تېزي د برېښنا سره. د باد په څېر مثالونه یې په دې کتاب کي ډېر راغلي دي، خو لسان الغیب عبدالرحمان بابا رحمة الله علیه یې د برېښنا سره داسي تشبیه کوي:

هســـــي تېــــز درومــــــي دوران
ګويـــــا بـــــرق دی درخشـــــان
د آســـيا پــــه څېــــر ګـــردش کـــا
پــــه زمـــين بانـــدي آســـمان

وخت د شتو په شان ارزښت لري، ولي د شتو ذخيره کول شونی وي، خو وخت نه ذخيره کيږي. ښه هغه دی چي د وخت څخه ژر تر ژره ګټه واخلي او بې ځايه تېرېدو ته يې پرې نهږدي او که تېر سي بيا په هيڅ ګون نه راګرځي. حضرت عبدالرحمان بابا څه ښه ويلي دي:

تېرساعت پـه مثـال مـړی د لحـد دی
مـړی چـادی ژونـدی کـړی پـه ژړا

د وخت اداره کول د انسان په واک کي نه وي. هر کله چي تېر سو بيا په اوښکو او پښېماني بيرته نه راګرځي. خو په يوه شرط موږ کولای سو چي ځان له پښېمانی څخه وژغورو او هغه هله چي د وخت څخه سمه او پر ځای، مناسبه ګټه واخلو.

## وخت ضايع کول د لوی څښتن د غضب لامل ګرځي

امام حسن بصري رحمة الله عليه فرمايلي دي:

" من علامة المقت اضاعة الوقت "

ژباړه: د لوی څښتن د خښم، کينې او غوسې له نښانو څخه يوه هم د وخت ضايع کول دي.

ابو طالب المکي (په ۳۸٦هـ کال مړ) په خپل کتاب "قوت القلوب في معاملة المحبوب" کي د امام حسن بصري پر پورتنی خبره باندي تبصره کوي وايي: داچي ته خپل قېمتي وخت چټي ضايع کوې، نو له دې څخه معلوميږي چي پر تا باندي لوی څښتن

په غوسه دی، ځکه که هغه سبحانه ستا سره مینه درلودلای، نو ستا وخت به يې پر داسي کارونو باندي لګولی وای چي د هغه پکښي رضاوای.

يوه بل حکيم عالم ويلي دي: چاچي د خپل عمر يوه ورځ په ناحقو او چټي چارو کي تېره او ضايع کړه، نو د خپلي ورځي په وړاندي يې نافرماني کړې ده او پر خپل ځان يې ظلم کړی او د خپل عمر سره يې درغلي (خيانت) کړې ده.

## د عمر په اړه پوښتنه او حساب کيږي!

که موږ د قرآن کريم، پيغمبر صلى الله عليه وسلم او صحابه وو رضي الله عنهم او اسلامي عالمانو رحمة الله عليهم لارښوونو او د دغو سترو هستيو اند او ژوند اوکارنامو ته لږ ځير سو، نو راته جوته به سي چي د اسلام سپېڅلی دين د کار او زيار دين دی او په ډاګه اعلاموي چي د انسان برى، نېکمرغي او پرمختګ د هغه په کار او تلاښ او هلو ځلو کي دی، وايي:

﴿وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَٰنِ إِلَّا مَا سَعَىٰ ﴿٣٩﴾ وَأَنَّ سَعْيَهُۥ سَوْفَ يُرَىٰ ﴿٤٠﴾ ثُمَّ يُجْزَىٰهُ ٱلْجَزَآءَ ٱلْأَوْفَىٰ ﴿٤١﴾﴾[النجم:٣٩/٥٣ - ٤١]

ژباړه: او انسان ته له هغه کاره پرته چي خپله يې کړی دی او هلي ځلي يې پسي کړې دي بله برخه او بدله نسته. او د هغه هلي ځلي او کوښښونه به (د قيامت په ورځ) وليدل سي. بيا به (يې د کار په مقابل کي) بدله په بشپړه توګه ور کړه سي.

همدااز د اسلام مبارک دين موږ ته لارښوونه کوي چي بايد پرله پسې او نه ستړی کېدونکی کار وکړو. کله چي له يوه کاره وزګاريږو ورپسې بايد بل کار پيل کړو ، تل او پرله پسې خوځند او متحرک اوسو او چي يوه دنده مو تر سره کړه د بلي دندي د تر سره کولو لپاره کار او زيار ته چمتو اوسو او لټی او ټمبلی ته ځان ورنه کړو، ځکه :

موجیم که آسوده ګی ما عدم ماست
ما زنده به آنیم که آرام نه ګیریم
په دې اړه د لوی څښتن دې لارښوونې ته پام وکړئ:

﴿فَإِذَا فَرَغْتَ فَٱنصَبْ ۝٧ وَإِلَىٰ رَبِّكَ فَٱرْغَب ۝٨﴾

[الشرح:۹۴/۷-۸]

ژباړه: کله چې د خپلو کارونو له یوه کار څخه وزګار او فارغ سوې، نو ورپسې په بل داسې کار باندې د بوختیا کوښښ وکړه او زیار وګاله، چې لوی څښتن ته دې نژدې کړي. او په یومخیزه توګه د خپل پالونکي خدای لوري ته په مینه مخه کړه.

د " التفسیر الوسیط "لیکونکی محمد سید طنطاوي د دغو آیتونو په تفسیر کې لیکي: له دغو دوو آیتونو څخه موخه داده چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم او د هغه په سپېڅلي شخصیت کې د هغه پیروان د داسې تل تر تله ښو او نیکو کارونو تر سره کولو ته وهڅوي چې څنګ پکښې نه وي او نیت یې هم خالص وي. داځکه چې پر ښو کارونو باندې همېشه توب او د هغو په تر سره کولو کې د لوی څښتن سره اخلاص داسې نېکمرغي رامنځ ته کوي چې بله نېکمرغي یې هیڅ په سر نه وي.

ښه نو که پر دغو ټولو خبرو او لارښوونو سربېره موږ خپل عمر په غفلت کې تېر کړی وي او پر څه د یادونې وړ کار او زیار باندې مو نه وي لګولی، نو به پر هغه دنیا څه راسره کیږي؟ په دې اړه د رسول الله صلی الله علیه وسلم دې سپېڅلي حدیث ته ځیر سئ:

«لَا تَزُولُ قَدَمَا عَبْدٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ حَتَّى يُسْأَلَ عَنْ عُمُرِهِ فِيمَا أَفْنَاهُ، وَعَنْ عِلْمِهِ فِيمَ فَعَلَ، وَعَنْ مَالِهِ مِنْ أَيْنَ اكْتَسَبَهُ وَفِيمَ أَنْفَقَهُ، وَعَنْ

جِسْمِهِ فِيمَ أَبْلَاهُ»[۳۹].

ژباړه: د قيامت په ورځ د آدم د زوی قدمونه د هغه له پالونکي خدای څخه نه ليري کيږي، تر څو چي پوښتنه ځني وسي چي خپل عمر يې په څه کي پای ته رسولی دی. په خپل علم يې څنګه عمل کړی دی، خپل شته يې له کومه او څنګه په لاس راوړي او په څه کي يې لګولي دي. او خپل بدن يې په څه کي ترزړ ښته رسولی دی.

له دې امله دی چي د لوی ښتن ستر استازي صلي الله عليه وسلم فرمايلي دي:

«نِعْمَتَانِ مَغْبُونٌ فِيهِمَا كَثِيرٌ مِنَ النَّاسِ:الصِّحَّةُ وَالْفَرَاغُ»[۴۰].

ژباړه: دوه نعمتونه دي چي ډېر خلک د هغه په اړه تېروتلي دي او تاوان يې پکښي کړی دی( هغه يې ضايع کړي دي او ګټه يې نه ده ځني اخيستې)، چي هغه روغتيا او فراغت دی.

نو فکر وکړئ چي موږ او تاسي خپل ځومره وختونه په بې هوده او بې کاره کارونو باندي تېر کړي دي. ځومره وختونه به مو د چايو په څښلو او د ټلوېزيون او فيسبوک او نورو په کتو تېر کړي وي؟ ځومره وختونه به مو د يو بل په غيبت کولو او په خندا او ټوکو تېر کړي وي؟ د دې هر څه په اړه حساب کيږي.

## ځانته مهال وېش جوړ کړئ

که غواړئ چي وخت مو بې کاره تېر نه سي او په ورځني ژوند کي چي کوم پلان لرئ، د هغه سره سم خپل کارونه پر مخ بوزئ، نو د هري ورځي لپاره يو مهال وېش جوړ کړئ او د هغه سره سم خپل ټول کارونه ترسره کړئ.

---

(۳۹)- ترمذي، كتاب صفة القيامة والرقائق والورع، باب في القيامة،۲۴۱۷ حديث.

(۴۰)- صحيح بخاري ، كتاب الرقاق ، بَاب ما جاءَ فِي الرِّقاق،٦۴۱۲ شمېره حديث.

لوی څښتن هر شی په نظم سره پیدا کړی او ترتیب کړی دی. لکه چي موږ د دې کتاب په لومړیو پاڼو کي وویل په اسلام کي هر کار پر وخت باندي وېشل سوی او منظم سوی دی، لمونځونه پر وخت کیږي، روژه پر وخت نیول کیږي، حج پر وخت ادا کیږي، عرفه پر وخت کیږي، طواف پر وخت کیږي، اذانونه پر وخت کیږي.... او داسي ډېر نور کارونه دي چي د هریوه لپاره وخت ټاکل سوی دی. همداراز که چیري د کایناتو نظام ته متوجې سو، نو راته څرګنده به سي چي د نړۍ ټول نظام په منظم ډول د مهال وېش سره سم مختـه ځي، نو موږ او تاسي هم باید خپل ټول کارونه پر وخت تر سره کړو او د دې لپاره باید له مهال وېش څخه ګټه واخلو.

که چیري زموږ د عالمانو او پوهانو ژوند لیکونه مطالعه کړو، نو راته څرګنده به سي چي هغو د خپلو کارونو لپاره مهال وېش جوړ کړی وو.

ابن مفلح حنبلي رحمة الله علیه په خپل "الاداب الشـرعیة" نومي کتاب کي د وخت د قدر او د مهال وېش په اړه داسي لیکلي دي:

" وخت له ضایع کېدو څخه هله ژغورل کیږي، چي څوک په زړه کي د هغه د اهمیت احساس ولري. انسان ته ښایي چي یو مهال وېش جوړ کړي او په هغه کي ټول کارونه په ترتیب سره د اصولو سره سم ووېشي" [41].

د وخـت د ژغورلـو او صـحیح اسـتعمالولو یـوازنی شـرط د خپلـو کارونو لپاره د ورځني ژوند مهال وېش جوړول دي. بریالی کس هغه دی چي خپل هر کار د مهال وېش سره سم تر سره کړي او له بې ځایه ګرځېدو، خبرو اترو او وخت تېرولو څخه ډډه وکړي.

د مهال وېش یوه ښېګڼه داده چي د هر کار وخت تاسي ته معلوم وي او تاسي مجبوره کېږئ چي هغه کار په هغه وخت کي تر سره کړئ.

---

(۴۱)- متاع وقت اور کاروان علم، ۸۸ مخ.

زما پلار په خپل "د مقالې ليکلو اصول" کتاب کې ليکلي دي:

"د کار مهال وېش جوړول او په هغه پابندي ډېر اهميت لري. د وخت په پابندي او انضباط کې ستر برکت وي او که مهال وېش په ټينګه پلی سي، په هيڅ کار کې به ستونزه را ولاړه نه سي.

حکيم الامت حضرت مولانا محمد اشرف علي تهانوي قدس سره العزيز (١٢٨٠-١٣٦٢ سپوږميز) تردې اندازې د وخت پابند وو چې د هغه ګران استاذ، له انګريزانو څخه د هند د آزادۍ ستر مبارز، د کابلي تفسير د ژباړې د برخې ليکونکی حضرت شيخ الهند مولانا محمود حسن ديوبندي رحمة الله عليه د هغه مېلمه وو، نو حضرت تهانوي د هغه د آرام او هوسايی ټول ترتيبات برابر کړل او د ليکلو د کار د وخت په رارسېدو سره يې په ډېر ادب او درناوي اجازه ځني واخيستل او د تصنيف په کار لګيا سو. څنګه چې يې په استاذ کې چورت بند وو تر يو څه کار کولو وروسته بېرته د استاذ خدمت ته حاضر سو، خو دغه ورځ يې هم کار بالکل ناغه نه کړ.

د کار په ځنډېدو کې که څه هم ډېر لږ وي، ډېره بې برکتي وي. حضرت تهانوي وايي زه چې کوم مضمون يا کتاب ليکم نو ناغه نه پکښې راولم. که کومه ورځ ګردسره د ليکلو فرصت ونه لرم نو د برکت لپاره يوه کرښه ليکم، څو مې د ليکلو سره بېخي اړيکه ونه شلېږي او که د ليکنې کار ګردسره وځنډېږي اړيکي مې ورسره شلېږي او بيا کار په ډېره مشکله د پخوا غوندې سم پر مخ روانيږي"(٤٢).

شيخ الحديث مولانا محمد زکريا رحمة الله عليه فرمايلي دي:

" د خپلو کارونو د سر ته رسولو لپاره مهال وېش جوړ کړئ او د هغه کار د تر سره کولو پر مهال که کوم کوچنی يا لوی سړی درسي

---

(٤٢)- د مقالې ليکلو اصول، دوهم چاپ، ٢٠٤ مخ.

هیڅ پروا یې مه کوئ. ځیني خلک دغه مهال د اخلاقو عذر رامنځ ته کوي او وایي چي که په دغه وخت کي کوم لوی سړی راسي نو باید له اخلاقو څخه کار واخیستل سي. خو زه د ده په ځواب کي وایم چي که دغه مهال د قضای حاجت اړتیا پېښه سي، نو آیا د هغه عذر هم نه کوئ"[٤٣].

بیت:

چي په خپله د چاکار تـه زړه نه کیږي
بیـا نـو ډېـري سـي پلمـې او بهـانې

اوس پوښتنه دا پیدا کیږي، چي څنګه کولای سو چي خپل وخت تنظیم کړو؟ د دې لپاره باید لاندي ټکي په نظر کي ونیسو:

١. لومړی د هري ورځي لپاره یو مهال وېش جوړ کړئ او پـه هغه کي د ورځي ټول کارونه په منظم ډول ووېشئ، مثلا: سهار له نهه بجو څخه تر لسو بجو دا کار کوم او وروسته بیا دا کار کوم او....

٢. هر کار چي په کوم وخت کي کوئ، هغه په هیڅ صورت کي مه پرېږدئ او په دې اړه د هیچا پروا مه کوئ.

٣. د هر کـار تـر منځ لږ تفـریح کـوئ. مثلا: یـو شـی وخـورئ، یا دباندي ووځئ یا یوه پیاله چای وڅښئ او داسي نور.

٤. د نن کار همدا نن وکړئ، سبا ته یې مه پرېږدئ. ځکه پـه دې ټوګه کارونه در باندي ډیریږي او بیا د هغو د سر ته رسولو توان له لاسه ور کوئ.

٥. د هر کار لپاره یو مناسب وخت وټاکئ چي د هغه کار لپاره مناسبت ولري. مثلا: د مطالعې او تلاوت لپاره د شپې وخت وټاکئ او د لیکلو او څېړني لپاره د سهار وخت وټاکئ.

٦. په کار کي جغرافیوي موقعیت هم پـه نظر کي ونیسئ، مثلا: کوم کارونه چي په یوه سیمه کي کیږي، ټول پـه یوه وخت کي تـر

---

(٤٣)- تحفة الطلباء و العلماء، ١٦٥ مخ.

سره کړئ. مثلا: که مو ښوونځی په یو ځای کي وي، نو کورس هم هلته ونیسئ او په پرله پسي ډول یې ووایاست، څو وخت در وسپمیږي.

۷. مهم وختونه د مهمو کارونو لپاره وټاکئ او په کوچنیو کوچنیو وختونو کي خپل واړه کارونه تر سره کړئ، مثلا: د مطالعې یا درس لپاره یو ځانګړی وخت وټاکئ. خو د کالو د اوتو کولو لپاره هر وخت چي مو لږ وخت پیدا کړ، هغه مهال یې ژر ژر اوتو کړئ.

۸. د هر کار تر منځ دمه راولئ او د دمې په وخت کي هر کار چي ستاسي ساعت په تیریږي او تفریح وي له هغه څخه ګټه واخلئ. په دې ډول سره نه ستړي کېږئ.

## سهار وختي راکښېنئ

د وخت د سپما یو مهم شرط سهار وختي راکښېنستل دي. که غواړئ چي په ورځ کي مو ټول کارونه په منظم ډول پر وخت تر سره سي او وخت مو بې ځایه تېر نه سي، نو سهار وختي راکښېنئ. ځکه په سهار وختي راکښېنستلو سره مو وخت بر کت کوي.

په دې اړه رسول الله صلي الله علیه وسلم لوی څښتن ته دعا کړې ده او فرمایلي یې دي:

«اللَّهُمَّ بَارِكْ لأُمَّتِي فِي بُكُورِهَا»[۴۴].

ژباړه: ای لویه څښتنه! زما د امت لپاره په سهار وختي کي بر کت واچوې.

په سنن ترمذي او د احادیثو په نورو کتابونو کي وایي چي له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه د دغه حدیث روایت کوونکی صخر الغامدي رضي الله عنه سوداګر وو او تل به یې د سوداګرۍ مالونه سهار وختي لېږل، نو له دې امله زیات شتمن سو او مال یې زیات سو.

---

(۴۴)- ترمذي، کتاب البیوع، باب ما جاء في التبكير بالتجارة، ۱۲۱۲ حدیث.

په تجربه سره ثابته سوې ده چې سهار وختي راکښېنستل له يوې خوا روغتيا ته ګټه لري، هغه کسان چې سهار وختي له خوبه راکښېني او بيا نه ويديږي، د هغو صحت د هغو کسانو په پرتله چې ناوخته را کښېني ښه وي. او له بلي خوا په سهار وختي را کښېنستو سره وخت سپمول کيږي او له وخت څخه ښه ګټه اخيستل کيږي.

په دې اړه يوه شاعر څه ښه ويلي دي:

فيضـی عجبـی يـافتم از صـبح بيينيـد
ايـن جـادۀ روشـن ره ميخانـه نباشـد

د اسلام سپېڅلی دين د دې لپاره چې د مسلمانانو وخت بې ځايه تېر نه سي مسلمانان هڅوي څو سهار وختي را کښېني او خپل کارونه له سهار څخه پيل کړي. خو له بده مرغه نن ورځ په ځوانانو کي سهار تر ناوخته پوري ويدېدل مود او فېش ګرځېدلی دی. زياتره ځوانان د شپې تر ناوخته پوري ويښ وي، خو سهار بيا تر ډېره ناوخته پوري ويديږي او له همدې امله يې وخت برکت نه لري. متل دی:

"څوک چې تر ځاښته خوب کوي ميږي به يې نر کټي زيږوي".

سعدي وايي:

خـــواب نوشـــين بامـــداد رحيـــل
بـــــاز دارد پيـــــاده را زســـــبيل

## موږ ولي وروسته پاته يو؟

موږ ولي وروسته پاته يو؟ دا يوه داسي پوښتنه ده چې نن ورځ د زياترو خلکو په ذهنونو کي پيدا کيږي. خو د دې پوښتني ځواب خپله موږ يو او زموږ کړني دي. خپله موږ او زموږ کړني زموږ د شاته پاته کېدو لامل ګرځېدلي دي. داچي زموږ هيواد د نورو هيوادونو په پرتله ډېر خوار او ځپلی دی او يو وار روسانو ونيو او اوس د امريکايي ښکېلاک تر ولکې لاندي دی، د دې هر څه رامنځته

کوونکي هم موږ خپله یو. که موږ لږ تر لږه د ایران د خلکو غوندي خپل هیواد ته کار کړی وای او د ایران د وسلوال پوځ غوندي پوځ مو درلودای نن به دغسي ځپلي ځیځېرلی او په ډول ډول کړاوونو اخته نه وای. اوس هم تر څو پوري چي موږ د اوس په شان سره بې اتفاقه یو او یو بل د نورو په وسلو او ان په نورو غلیمانو وژنو او د دغو جنایتکارو په اصطلاح مشرانو پیروي او ملاتړ پرې نه ږدو او په خپلو ځانونو کي او په خپل دغه حال کي بدلون رانه ولو، لوی څښتن هم په موږ او زموږ په دې حالت کي بدلون نه راولي او زموږ په خپلواکي او پرمختګ کي زموږ سره مرسته نه کوي. په دې اړه لوی څښتن فرمایي:

﴿إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُغَيِّرُ مَا بِقَوۡمٍ حَتَّىٰ يُغَيِّرُواْ مَا بِأَنفُسِهِمۡۗ وَإِذَآ أَرَادَ ٱللَّهُ بِقَوۡمٖ سُوٓءٗا فَلَا مَرَدَّ لَهُۥۚ وَمَا لَهُم مِّن دُونِهِۦ مِن وَالٍ ١١﴾[ الرعد: ۱۳/ ۱۱]

ژباړه: باور ولرئ چي الله د کوم ولس حالت تر هغو نه بدلوي چي هغه ولس پخپله په خپلو حالاتو کي بدلون رانه ولي. او کله چي الله پر کوم ولس باندي د ناورین(آفت) راوستلو اراده وکړي، نو د هغه څه چي الله یې اراده کړې وي ردوونکي نسته او له هغه پرته به هغو ته بل کالخوای(سرپرست) او ملاتړی نه وي(، چي چاري یې سمبالي کړي او هغه حالت چي د هغو خوښ وي ور کړي او هغه چي خوښ یې نه وي ځني لیري کړي).

زموږ او ستاسي د بدمرغۍ او وروسته پاته کېدو یو ستر لامل زموږ له خواد وخت د قدر کولو پرځای د هغه وژل او بربادول دي. موږ ته په وارو وارو زموږ او زموږ د هیواد د نېکمرغه کولو او یو موټي کولو وخت او چانس په لاس راغلی دی خو له بده مرغه موږ یې قدر نه دی کړی او ګټه مو نه ده ځني اخیستې.

د هند له نيمي وچي څخه د انګرېزانو د وتلو پرمهال پر موږ داسي وخت راغلی وو چي موږ په ډېره آساني سره زموږ د هيواد له پرېي څخه بېله سوې برخه (د افغانستان هغه برخه چي اوس د پاکستان تر ولکه لاندي ده) بيرته ترلاسه کولای سوای، خو موږ د غفلت په داسي درانه خوب ويده وو چي د هغه مهال له جرياناتو څخه مو هيڅ ګټه وانه خيسته او د هيواد دغه تقريباً نيمه خوا مو تر اوسه لا د پاکستان تر ناپاک تسلط لاندي ده. بياچي د روسانو تر ماتي وروسته زموږ د هيواد د خپلواکۍ ساتلو او زموږ د کنډو او کپر هيواد د بيارغولو او ودانولو ډېر ښه وخت په لاس راغی، زموږ جهادي مشرانو يې قدر ونه کړ، د اسلام د سپېڅلي دين زريني لارښووني يې له پامه وغورځولې او په تېره د لوی څښتن د دي مبارکو آيتونو هيڅ پروا يې ونه کړه چي فرمايي:

﴿يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا لَقِيتُمۡ فِئَةٗ فَٱثۡبُتُواْ وَٱذۡكُرُواْ ٱللَّهَ كَثِيرٗا لَّعَلَّكُمۡ تُفۡلِحُونَ ﴿٤٥﴾ وَأَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَلَا تَنَٰزَعُواْ فَتَفۡشَلُواْ وَتَذۡهَبَ رِيحُكُمۡۖ وَٱصۡبِرُوٓاْۚ إِنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلصَّـٰبِرِينَ ﴿٤٦﴾﴾ [الانفال: ٨ : ٤٥ ، ٤٦]

ژباړه: ای هغو کسانو چي الله او پيغمبر يې رشتيني بولئ او په شريعت يې عمل کوئ! کله چي (د کفارو) د کومي (داسي) ډلي سره مخامخ سئ (چي در سره جنګيږي)، نو (د هغو سره د جګړې لپاره) ثابت قدمه اوسئ (پښې ټينګي کړئ، کلک ولاړ اوسئ او مه ځني تښتئ، بلکي پر دې لوی طاعت باندي چي پای يې عزت او نصرت دی له زغم او صبر څخه کار واخلئ). او الله ډېر ډېر يادوئ (او د نصرت او پر دښمن باندي د بري دعاوي ورته کوئ) چي وژغورل سئ (يعني بری درپه برخه سي. رشتيا هم صبر او ثبات او د لوی څښتن زيات

ذکر کول په دې دنیا کې پر دښمنانو باندې د برې او نصرت او پر هغه دنیا د لوی ځښتن د رضائیت او فوز او فلاح له ډېرو لویو لاملونو څخه باله سي).

او (په ټولو احوالو کې مو) د الله او د هغه د پیغمبر اطاعت وکړئ او یو له بل سره شخړې (او مخالفتونه) مه کوئ، (چې د خولو او زړونو یو والی مو له منځه ولاړ سي). که نه کمزوري به سئ، ځواک او برم به مو ولاړ سي او (د دښمن سره په جګړه کې) له زغم (صبر) څخه کار واخلئ. باور وکړئ چې الله (په مرسته، نصرت او تایید) د صبر کوونکو ملګری دی (او نه یې ښویوي).

د دوی د ناپامیو، سرکښیو، بې اتفاقیو، جګړو او مرګ ژوبلې او ورانیو او له دوی څخه زموږ د خلکو په پټو سترګو د پیروۍ او ملاتړ له امله موږ ډېر طلایي چانسونه او د وخت ډېرې زرینې او ارزښناکې شېبې له لاسه ورکړې، چې په پایله کې یې هم زموږ هیواد او خلک تر خوار و خوار سول او هم زموږ جهادي مشران خوار، بدنام او ګنهکار سول او هم مو خپل هیواد تیاره ګوله کړ او د امریکایي ښکېلاک په خوله کې مو ور کړ.

نو تر څو پورې چې موږ په خپلو ځانونو کې بدلون او سمون رانه ولو او د دغو جنایتکارو په اصطلاح مشرانو ملاتړ خوشې نه کړو او په خپل مسؤولیت پوه نه سو او د وخت له شېبې، شېبې څخه لازمه ګټه وانه خلو او په اهمیت او ارزښت یې ځان پوه نه کړو، تر دې به لا خوارېږو او هیڅکله به د بریالیتوب او وړاندیتوب مخ ونه وینو.

د نورو مسلمانانو په هکله هم باید ووایو چې پخوا مسلمان هغه امت وو چې د هرې شېبې ارزښت ور معلوم وو. د هرې شېبې څخه به یې وړ او لازم کار اخیست. تر دې چې د وخت تنظم او ترتیب لوېدیځوالو له مسلمانانو څخه زده کړ او تر اوسه ښه ګټه ځنې اخلي، خو له بده مرغه نن مسلمان د وخت قدر تقریباً هېر کړی دی.

اسلامي امت د هرې شېبې څخه د ګټې اخیستو په صورت کې

پر نړۍ حکومت کاوه. مسلمانان زیاتره د وخت او شپې وړي وه. د هغو تر ټولو ډېرحرص د وخت په اړه وو. د همدغه وخت څخه د ګټې اخیستو پایله وه چې علامه عقیل رحمة الله علیه اته سوه ټوکه کتاب و لیکی، چې د نړۍ تر ټولو ستر کتاب دی. امام غزالي رحمة الله علیه اته اویا اصلاحي علمي او څېړنیز کتابونه لیکلي دي، چې په هغو کي یوازي "یاقوت التأویل في تفسیر التنزیل"په څلویښتو ټوکونو کي لیکل سوی دی. ابن سینا رحمة الله علیه " الحاصل و المحصول "په شلو ټوکونوکي لیکلی دی. " الشفاء" یې په اتلسو ټوکونو کي لیکلی دی. " القانون فی الطب " یې هم په اتلسو ټوکونو کي لیکلی دی. " کتاب الانصاف " یې په شلو ټوکو کي لیکلی دی. "لسان العرب في اللغة" یې په لسو ټوکو کي لیکلی دی. ابو بکر ابن العربي "الإنصاف في مسائل الخلاف" په شلو ټوکونو کي لیکلی دی. ابن منظور افریقی "لسان العرب" په پنځلسو ټوکونو کي لیکلی دی. امام محمد رحمة الله علیه د زرو په شاوخوا کي کتابونه لیکلي دي. ابن جریر رحمة الله علیه په خپل ژوند کي دري لکه اتلس زره پاڼي لیکلي دي. علامه باقلاني رحمة الله علیه یوازي د معتزله وو په رد کي اویا زره پاڼي لیکلي دي. ابن حجر عسقلاني رحمة الله علیه" فتح الباري شرح صحیح البخاري " په څوارلسو ټوکونو کي لیکلی دی. " تهذیب التهذیب"یې په دوولسو ټوکونو کي لیکلی دی." الإصابة في تمییز أسماء الصحابة " یې په نهو ټوکونو کي لیکلی دی." لسان المیزان " یې په اوو ټوکونو کي لیکلی دی.

باید ووایو چي هغو یوازي دا تالیفات نه دي کړي ، بلکي د دې تر څنګ به یې په سوو سوو نفلونه، روژې او عبادتونه د هغو عادت ګرځېدلی وو. هغه مهال د نن ورځي په شان آسانتیاوي هم نه وې او نه

د نن ورځي په شان برېښنا، کمپیوټر، انټرنیټ، کتابتونونه او داسي نور وسایل موجود وه. که چیري د نن ورځي اسانتیاوي په هغه وخت کي وای، فکر وکړئ چي هغو به څومره نور ډېر کار کړي وای. خو موږ سره له دې چي هر څه راته چمتو دي او هره آسانتیا په لاس کي لرو، بیا هم له سستۍ څخه کار اخلو. له دې امله وروسته پاته، ذلیل او بې وزلي اوسو.

په دې اړه مولانا مناظر احسن ګیلاني رحمة الله علیه فرمایلي دي:

" د هغه مهال د ټولو عالمانو ژوند د وخت سره تړلی وو . دا د هغو د وخت د قدر پایله ده چي دوی دومره ستر ستر کارونه تر سره کړي دي. ځیني کسان دې ته اریان دی چي هغو خلکو چي دومره عبادتونه کول هغو دا دومره وخت له کومه کاوه؟ خبره دا ده چي هغو خپل وخت په بې هوده او بې معنا کارونو باندي نه تېراوه، کوم چي اوس په دې چټي چارو وخت ضایع کول عادي کار ګڼل کیږي. هغو د خپل وخت د یوې یوې شېبې قدر کاوه. خو نن عام خلک خپل لږ وخت په کاروبار باندي مصروفوي، اما تر هغه وروسته خپل ډېر وخت په لوبو، ساعت تېریو، ټلوېزیون کتلو، او داسي نورو بې کارو شیانو تېروي. که چیري دوی خپل دا وخت په کار کولو باندي تجربه کړي، نو دوی ته به خپله څرګنده سي چي د تېرو عالمانو کارنامې کومه د اریانتیا خبره نه ده"[۴۵].

لکه چي پوهیږو ساعت د لومړی ځل لپاره مسلمانانو جوړ کړی دی ، دا ځکه چي اسلامي امت د وخت په قدر او اهمیت پوهېدی او په وخت باندي د مسلمانانو د پابندۍ او هغه ته د زیات ارزښت ورکولو له امله وو چي زیارونه یې وګالل او موفق سول چي د لومړي ځل لپاره ساعت جوړ کړي او له هغه څخه په ګټه اخیستنه خپل ټول ژوند په دقیقه توګه، د مهال وېش سره سم ښه ترا تنظم کړي، وخت

---

(۴۵)- *متاع وقت اور کاروان علم*، ۱۰۰ مخ. د *تدوین حدیث*، ۱۷۴ مخ په حواله.

وسپموي او د ضايع کېدو مخه يې ونيسي. له همدې امله اسلامي امت په هغه وخت کي دومره پرمختګ کړی وو چي پر نړۍ يې حکومت کاوه. خو له بده مرغه نن د هماغه د مسلمانانو له خوا د رامنځ ته کړي ساعت په قدر لوېديځوال پوه سوي دي او اوس هغوی د وخت قدر کوي او پر اسلامي نړۍ باندي د واک چلولو جوګه سوي دي.

نو په دې پوه سئ ! چي که خپل دې غفلت او د وخت په قدر نه پوهېدو ته نور هم دوام ورکړئ، په سلګونو کلونو نور به هم شاته پاته سئ.

د وخت په ارزښت ځانونه پوه کړئ. او د هري شېبې څخه يې ګټه واخلئ. د چای څښلو، بانډار کولو، بې ځايه خبرو کولو، ډېر فېسبوک کتلو، د ټلويزيوني سريالونو له تعقيبولو، ډېر خوب کولو، بې ځايه موډ او فېشن کولو څخه ډډه وکړئ. په دې کارونو سره هيڅ ځای ته نه رسېږئ. کار وکړئ، څو د دې جوګه سئ چي د بري ناوې په غېږ کي ونيسئ.

## تر اوسه مو عمر څنګه تېر کړی دی؟

ښايي يو وخت تاسي ته دا پوښتنه پيدا سي چي تر اوسه مو عمر څنګه تېر کړی دی؟ دا داسي پوښتنه ده چي د ډېرو لږو کسانو سره پيدا کيږي. خو هر انسان بايد له ځانه دا پوښتنه وکړي او د خپل تېر عمر په اړه فکر او محاسبه وکړي چي تر اوسه چي يې کوم عمر تر شا پرې ايښی دی ، هغه يې په څه او څنګه تېر کړی دی؟ څومره ګټور کارونه يې تر سره کړي دي؟ څومره لاسته راوړني يې درلودلي دي؟ زه ډاډه يم چي ډېر کسان به د خپل تېر عمر د پايلي په پوهېدو سره پښېمانه وي. ځکه زياترو کسانو خپل ډېر وختونه په بې ځايه کارونو يا بې ځايه ناستي، خبرو کولو، ټلويزيون کتلو، ډرامو تعقيبولو، يو د بل غيبت کولو او داسي نورو بابېزو کارونو سره تېر کړي دي. او په

دې اړه لوی څښتن تعالی فرمايلي دي:

﴿ كَذَٰلِكَ يُرِيهِمُ ٱللَّهُ أَعۡمَٰلَهُمۡ حَسَرَٰتٍ عَلَيۡهِمۡۖ وَمَا هُم بِخَٰرِجِينَ مِنَ ٱلنَّارِ ﴾[البقره :۲/۱٦۷]

ژباړه: الله به دوی ته وښيي چې د دوی (باطل) عملونه (نن) د دوی لپاره د حسرت او پښېمانتيا لاملونه جوړ سوي دي او اوس به هغوی په هيڅ ډول له اور څخه نه سي وتلای.

نو مخکې له دې چې سبا د پښېمانۍ اوښکې توی کړئ او خپله ارزښتناکه شتمني مو چې وخت دی، له لاسه ورکړې وي او بيا يې په لاس نه سئ راوړلای ، ښه خبره داده چې سر له اوسه د وخت قدر وکړئ او له هري شېبې څخه يې ګټه واخلئ او هغه وخت چې اوس مهال لرئ، په سمه توګه په کار واچوئ.

شاعر وايي:

ګذشـــته را نتـــوان بدســـت آورد امـــروز
رو کنون کار کن که وقت کار است هنوز

## وخت څنګه له ضايع کېدو څخه وژغورو؟

د هر انسان په ذهن کې دا پوښتنه پيدا کيږي چې څنګه کولای سو چې خپل وخت د بې ځايه تېرېدو او ضايع کېدو څخه وژغورو؟ په ځواب کې بايد ووايو چې دا ډېر آسان کار دی، خو که چيري څوک عمل په وکړي. هو! راځئ چې د وخت د ژغورلو لپاره لاندي څو مهم ټکي په نظر کي ونيسو:

۱. د خپل ورځني ژوند لپاره يو مهال وېش جوړ کړئ او په هغه کي خپل د هري ورځي کارونه پر مناسبو وختونو باندي ووېشئ او هر کار پر وخت تر سره کړئ. په دې ډول ستاسي وخت بې ځايه نه ضايع کيږي.

۲. هغه کارونه چې د سهار لخوا تر سره کیږي، د هغو لپاره د سهار وخت وټاکئ او کوم چې د شپې له خوا کیږي، د هغو لپاره د شپې وخت وټاکئ. ځکه د کارونو لپاره د وخت انتخاب ډېر اړین دی.

۳. ټلوېزيون چې اوس د ژوند يوه مهمه برخه ګرځېدلې ده، د هغه د کتلو لپاره وخت وټاکئ. ځيني کسان چې يو ځل ټلوېزيون ته کښېني، بيا په ډېر زحمت ځني ولاړيږي. خو که چيري تاسي د ټلوېزيون کتو ته وخت وټاکئ ، نو بيا مجبوره کېږئ چې پر هغه وخت ځني ولاړ سئ. مثلا: کومه خپرونه چې ستاسي خوښه وي د هغه لپاره نيم ساعت وټاکئ او هڅه وکړئ چې خبرونه مو د شپې له خوا وګورئ. ځکه د ورځي له خوا وخت تر شپې ډېر ارزښت لري.

۴. انټرنيټ او فېسبوک چې اوس د ژوند يوه بله مهمه برخه ګرځېدلې ده او زياتره ځوانان يې معتاد دي، د هغه لپاره هم وخت وټاکئ. مثلا: که چيري تاسي فېسبوک پرېښولای نه سئ، نو د شپې له خوا يو څو دقيقې وخت ورته وټاکئ او د ټولي ورځي خپروني او نوي نوي خبرونه يوازي د شپې وګورئ. په دې ډول سره ستاسي وخت له ضايع کېدو څخه ژغورل کيږي.

۵. که غواړئ چې وخت مو بې ځايه تېر نه سي، سهار وختي را کښېنئ. په سهار وختي راکښېنستو کي برکت وي. له سهار څخه خپل کارونه پيل کړئ. ځکه سهار هم انسان صحتمند او تازه وي او هم ډېر کارونه تر سره کولای سي.

٦. د شپې له خوا وختي ډوډۍ مه خورئ. ځکه په وختي ډوډۍ خوړلو سره انسان ته خوب ورځي او د خوب په راتلو سره ګنسيت پيدا کيږي او بيا کار کول شونی نه وي. نو هڅه وکړئ چې لږ ناوخته ډوډۍ وخورئ او د هغه پرځای کار وکړئ.

۷. هغه کسان چې ډيري خبري کوي، د هغو سره لږ ناسته ولرئ. ځکه داسي کسان د وخت په قدر نه پوهيږي او د نورو ډېر وخت ضايع کوي.

۸. ډېرو مېلو، بانډارونو ، د لوبو او تفريح ځايونو ته مه ځئ. ځکه دا ډول ځايونه ډېر وخت غواړي او اکثره ډېر ليري موقعيت لري چي د تلو لپاره يې هم بايد ډېر وخت ضايع سي.

۹. د ټليفون له ډېر استعمالولو څخه ډډه وکړئ. زياتره ښځي خپل ډېر وخت په ټليفون کي د خپلو خپلوانو سره په خبرو اترو کي تېروي او دا يې يو ډول عادت ګرځېدلی وي، چي بايد ډډه ځني وسي.

۱۰. د چايو څښلو وخت مو لږ وټاکئ. په نړۍ کي خلکو ته يوه پياله چای ور کول کيږي او بس . بيا هر څوک په خپل کار پسي ځي. خو له بده مرغه زموږ په هيواد کي د چايو لپاره څو ترموزه او چايبران ډکيږي او د هغو د څښلو لپاره څو ساعته وخت ضايع کيږي. له يوې خوا چای څښل بې ګټې کار دی(بلکي ډېري چای څښل ډېر روغتيايي تاوانونه هم لري) او له بلي خوا وخت بې ګټې تيريږي.

۱۱. د نن کار سبا ته مه پرېږدئ. هر کار چي نن تر سره کولای سئ، همدا نن يې تر سره کړئ. ځکه سبا ورځ معلومه نه ده چي څه به پيښيږي او تاسي به بيا وخت لرئ که نه؟

۱۲. هغه وختونه چي غټ کارونه نه پکښي تر سره کيږي، په هغو کي کوچني کوچني کارونه تر سره کړئ. مثلا: په موټر کي د تګ پر مهال که موټر بل څوک چلوي تاسي کولای سئ چي د قرآن کريم تلاوت وکړئ، کتاب ولولئ، نوکان واخلئ، ورځپاڼه مطالعه کړئ، ذکر وکړئ او داسي نور.

۱۳. د خوړو په خوړلو کي ډېر ځنډ مه کوئ. ځيني کسان چي کله ډوډۍ خوري، نو يو اوږد مجلس را واخلي چي څو ساعته وخت نيسي. ډوډۍ خلاصه سي، خو مجلس لا نه وی خلاص سوی.

۱۴. ډېرو ودونو او محفلو ته مه ځئ. ځيني کسان ډېر د ودونو او د ښاديو شوقيان وي. هره ورځ يا په اوونۍ کي يو يا دوو ودو ته خبر وي او په دې ډول سره خپل وخت ضايع کوي.

۱۵. د ډېرو سندرو اورېدو، فلمونو کتو، موبايل کتو څخه ډډه

وکړئ. دا کارونه هم ډېر وخت ضایع کوي.

۱۶. د خپل هر کار لپاره وخت وټاکئ. مثلا: د لمبېدو لپاره پنځلس دقیقې، د خوړلو لپاره پنځلس دقیقې، د سپورټ لپاره شل دقیقې، د انټرنیټ لپاره لس دقیقې او داسې نور. ډېر کسان چې یو ځل په تشناب ننوزي، بیا یې راوتل ډېر سخت کار وي. هڅه وکړئ چې لږ وخت په تشناب کې تېر کړئ.

۱۷. هغه کارونه چې د ورځې ستاسې وخت نیسي، د شپې له خوا یې تر سره کړئ. مثلا: د کور پاکېده، د کالو پرېولل، د ځان پرېولل، د کالو اوتو کول او داسې نور.

۱۸. موډ او فېشن ته لږ وخت ورکړئ. نن ورځ زیاتره ځوانان نجونې او هلکان خپل ډېر وخت په موډ او فېشن تېروي. هڅه وکړئ چې دې کارونو ته لږ وخت ورکړئ او ډېروخت مو نورو ګټورو کارونو ته وباسئ.

۱۹. د تفریح او آرام کولو په وخت کې د خپلو خوښیو او بوختیاوو له کارونو څخه کار واخلئ. په دې ډول مو وخت بې ځایه نه تیرېږي.

۲۰. لږ کار کوئ، خو په پرله پسې توګه یې کوئ. ځکه په یوه واري ډېر کار کولو سره انسان ستړی کیږي.

## د وخت قدر او ارزښت د عالمانو له نظره

د وخت په قدر او اهیمت موږ هغه وخت پوهیږو، کله چې د تېرو عالمانو ژوند لیکونه مطالعه کړو او وګورو چې هغو څنګه د وخت قدر کاوه او له هري شېبې څخه یې څنګه ګټه اخیستل.

راځئ چې دلته د وخت د قدر کوونکو ځینې بېلګې مطالعه کړو:

۱. ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي:

"زه په هیڅ شي دومره نه یم پښېمانه سوی، څومره چې په دې پښېمانه کېږم چې د یوې ورځې لمر ډوب سي، زما عمر ورسره کم

سي، خو عمل مي پکښې ډېر نه سي" [٤٦].

۲. امام ابو یوسف رحمة الله علیه فرمایلي دي: یوه ورځ مي زوی مړ سو، خو زه له دې وېرې د هغه تکفین او تجهیز ته حاضر نه سوم چي د امام ابو حنیفه رحمة الله علیه د درس کوم څه راڅخه پاته نه سي او بیا یې پر پاته کېدو حسرت راته ونه درېږي او هغه مي خپلو ګاونډیو او خپلوانو ته پرېښود." [٤٧].

همدا راز یې فرمایلي دي :

" زه د ناروغۍ څخه پر ته هیڅ وخت په کوچني او لوی اختر کي هم له استاذ څخه نه یم بېل سوی".

۳. د امام محمد رحمة الله علیه په اړه د هغه شاګرد محمد بن سماعه رحمة الله علیه فرمایلي دي:

" دی به په مطالعه کي داسي غرق وو، چي کله به چا د مطالعې په دوران کي سلام اچاوه، نو د دې پر ځای چي د سلام ځواب ور کړي، هغه ته به یې دعا کول".

د ده لمسي ویلي دي:

"د ده تر وفات وروسته ما د خپلي مور څخه پوښتنه وکړه چي کله چي به نیکه په کور کي وو، څه به یې کول؟ زما مور به په اشاره کولو سره راته ویل: هغه به هلته ناست وو او کتابونه به یې شاوخوا ته پراته وه او د مطالعې په وخت کي به یې هیڅ خبري نه کولې".

ویل کیږي چي ده به د ډېري مطالعې له امله خپلو جامو ته پام نه وو. د کور چرګان یې ځکه حلال کړل، چي د هغو د اذانونو له امله به د ده په مطالعه کي خلل راتی.

امام شافعي رحمة الله علیه فرمایلي دي:

" زه یوه شپه د امام محمد رحمة الله علیه سره پاته سوم. د ده ټوله

---

(٤٦)- د علي بن نایف الشحود الوقت وأهمیته في حیاة المسلم،۱/ ۱۳۲ مخ.

(٤٧)- آداب المتعلمین،۱٦٤مخ.

شپه داسي تېره سوه چي لږ وخت به يې مطالعه کول او بيا به لږ وخت پرېوتی. بيا به راکښېنستی مطالعه به يې پيل کړه. کله چي سهار سو، نو له نوي اودس پر ته يې د سهار لمونځ وکړ. له دې څخه څرګندېږي چي ده ټوله شپه په اوداسه تېره کړې وه او مطالعه يې کول".

۴. د نامتو عالم علي البغدادي معروف په ابن سکينة البغدادي رحمة الله عليه په اړه علامه ذهبي رحمة الله عليه فرمايلي دي چي ده به خپلو شاګردانو ته فرمايل:

" يوازي سلام اچوئ، تر دې ډېر نور څه مه واياست". او دا به يې ځکه ويل چي په ډېرو خبرو کولو سره به يې وخت ضايع کېدی. [۴۸].

۵. ابن ابي حاتم رحمة الله عليه چي له تفسير او نورو کتابونو څخه يې ډېر و لويو او نامتو عالمانو ګټه اخيستې ده، فرمايلي دي:

" يوه ورځ زه د خپل يوه ملګري سره د استاذ په خدمت کي حاضر سوم. خو کتل مو چي په هغه ورځ استاذ لږ ستړی معلومېدی. له هغه ځای څخه ولاړو پر لاري مو يو کب (ماهی) رانيوی. کله چي خپل استوګنځي ته ورسېدو، د بل استاذ د درس وخت پيل سو. موږ کب کښېښود، درس ته حاضر سوو. درې ورځي په دې ډول سره تيري سوې، تر درو ورځو وروسته ووېرېدو چي کب بوی ونه کړي او خراب نه سي. نو پر ته له پخېدو څخه مو دغسي اوم وخوړ. ځکه چي د هغه د پخېدو لپاره مو وخت نه درلود. نو امام فرمايلي دي چي د علم زده کړه په راحت او آرامي سره نه تر لاسه کيږي" [۴۹].

۶. حافظ ابن حجر عسقلاني رحمة الله عليه د وخت دومره قدر کاوه، چي هيڅکله به يې نه غوښتل چي يوه شېبه يې بې کاره تېره سي. ان

---

(۴۸)- سير اعلام النبلاء، ۲۱ / ۵۰۴ مخ.

(۴۹)- تذکرة الحفاظ، ۳ / ۸۳۰ مخ.

کله چي به يې د نيي قلم قطع کاوه، په دې وخت کي به يې پر ژبه د الله تعالی ذکر جاري وو.[٥٠].

۷. د شيخ الاسلام ابن تيميه رحمة الله عليه په اړه راغلي دي: ده به د خپل ژوند يوه شېبه هم بې ځايه نه تېرول. ځيني وختونه به يې خپل شاګرد ته فرمايل: " کتاب په لوړ آواز و وايه، چي زه يې هم واورم او وخت مي ضايع نه سي".

دغه راز ابن تيميه رحمة الله عليه فرمايلي دي:

ځيني وختونه د يوه آيت په اړه شاوخوا سل تفسيرونه مطالعه کړم. بيا لوی څښتن ته د فهم او پوهي دعا وکړم او ووايم: ای د آدم او ابراهيم ښوونکې!ما ته ښوونه وکړه او مسجدونو او داسي نورو ځايونو ته ځم او پر مخ خاوري بادوم او له لويه څښتنه سوال کوم او وايم: ای د ابراهيم ښوونکې! پوه مي کړه"[٥١].

بل ځای ابن تيميه رحمة الله عليه فرمايلي دي:

"زه چي کله په بازار يا مسجد يا مدرسه کي يم، نو زما په ذکر او استغفار کي هيڅ ستونزه نه رامنځته کيږي او په پرله پسي توګه بوخت يم"[٥٢].

۸. علامه ذهبي رحمة الله عليه د خطيب بغدادي رحمة الله عليه په اړه ليکلي دي:

"هغه به پر لاري د تلو پر مهال هم مطالعه کول، تر څو د تلو پر مهال يې وخت ضايع نه سي"[٥٣].

۹. د ابن الانباري رحمة الله عليه په اړه خطيب بغدادي رحمة الله عليه

---

(٥٠)- جهان ديده، ١٥٥ مخ.

(٥١)- تاريخ دعوت وعزيمت، ٤٢/٢ مخ.

(٥٢)- متاع وقت اور کاروان علم، ٢٢٢ مخ. د الکواکب الدريته، ١٥٦ مخ په حواله.

(٥٣)- تذکرة الحفاظ، ١١٤/٣ مخ.

په خپل کتاب " تاریخ بغداد " کي ليکلي دي:

"یوه ورځ ابن الانباري په بازار کي روان وو چي ناڅاپه د ده سترګي پر يوې مینځي باندي ولګیږي. د مینځي ښایست د ده په زړه کي ځای ونیسي. د هغه وخت خلیفه د ده ډېر درناوی کاوه او هغه مینځه یې ده ته ور کړه. کله چي مینځه د هغه کور ته ورسي، نو څنګه چي الانباري په مطالعه بوخت وو خپل مریي ته ووايي چي دا له کوره وباسه. کله چي مریي هغه له کور باسي، نو مینځه ور ته ووايي: یو ځل ودرېږه زه غواړم د ده سره يو دوې خبري وکړم او الانباري ته ووايي: تاسي ما پر ته له دې چي زما جرم راته ووایاست له کوره باسئ، خلک به څه فکر وکړي آخر زما ګناه څه ده؟ الانباري ور ته ووايي: ستا ګناه داده چي تا زما په علمي مسایلو کي اخلال رامنځته کړ. کله چي خلیفه په دې باندي خبر سي، نو ووايي:

د علم خوږوالی چي څومره د دې سړي په زړه کي دی، ښايي د بل چا په زړه کي نه وي". (۵۴).

۱۰. ابن جوزي رحمة الله علیه د ځان په اړه فرمایلي دي:

" زما هیڅ نه په یادیږي چي یوه ورځ دي زه د کوچنیانو سره پر لار په زوره وخاندم. زما په یاد دي چي زه د شپږو کالو په عمر ښوونځي ته ولاړم. د اوو کالو وم چي زه به د جامع مسجد پر مخامخ میدانۍ ته تلم او هلته به مي د لوبو د تماشې پر ځای د حدیث په درس کي ګډون کاوه. استاذ چي به کوم درس راکاوه ، هلته به مي یاداوه . خو کله چي به کور ته راغلم، نو هغه ټول شیان به مي لیکل. نورو هلکانو به د دجلې پرغاړه لوبي کولې. خو ما به د یوه کتاب پاڼې د ځان سره هلته وړلې او د هغو څخه بېل به مي یو ځای مطالعه کول. ما به د استاذانو او پوهانو په درسي حلقو کي داسي په بېړه ګډون کاوه چي د ژر ژر ځغستلو

---

(۵۴)- تاریخ بغداد، ۱۸۲/۳ مخ او *متاع وقت اور کاروان علم*،۱۸٦ مخ.

له امله به مي نفس بند بند کېدی. زما شپه او ورځ داسي تېرېدل چي هیڅ به د خوړو خوړلو انتظام پکښي نه وو"(۵۵).

۱۱. شیخ عبد الوهاب شعراني رحمة الله علیه د شیخ الاسلام زکریا انصاري رحمة الله علیه په اړه فرمایلي دي:

ما شل کاله د انصاري خدمت کړی دی. په دې موده کي ما هیڅ وخت هغه بې کاره ونه لیدی. او نه مي په یوه بې هوده کار باندي بوخت ولیدی. سربېره پر دې چي ډېر زوړ سوی وو، بیا به یې هم د فرضو لمونځونو تر څنګ سنت هم په ولاړې کول. هغه به فرمایل: زه نه غواړم چي ځان مي په سستۍ عادت سي. (۵٦).

۱۲. د امام زهري رحمة الله علیه په اړه راغلي دي چي هغه به دومره د وخت قدر کاوه، چي ټوله ورځ به په مطالعه بوخت وو او په نورو چارو به نه خبرېدی. یوه ورځ د هغه مېرمن په غوسه سي او ورته وویل: " په خدای مي دي قسم وي چي دا کتابونه ماته تر درو بنو ډېر بد دي"(۵۷).

۱۳. حضرت قاري صدیق رحمة الله علیه د ځان په اړه فرمایلي دي:

" د زده کړي په زمانه کي به په ۲۴ ساعتونو کي تر دوو ساعتونو ډېر نه ویدېدم. د بې خوبۍ له لاسه به مي پر سر ډېر درد وو اوس مي هم پر سر کله کله درد وي، خو د هغه وخت په شان نه وي. خو ما به د درد په حال کي کار کاوه او دا مي یو عادت ګرځېدلی وو"(۵۸).

۱۴. امام نووي رحمة الله علیه د خپلو زده کړو د مهال په اړه خپل شاګرد ابو الحسن بن عطار رحمة الله علیه ته فرمایلي دي:

---

(۵۵)- متاع وقت اور کاروان علم، ۲۰۷ مخ. د لفتته الکبد في نصیحة الولد، ۸۱ او ۸۲ مخونو په حواله.

(۵٦)- متاع وقت اور کاروان علم، ۲۳۱ مخ. الطبقات الکبری د ۲/ ۱۱۲ مخ په حواله.

(۵۷)- متاع وقت اور کاروان علم، ۱۴۷ مخ.

(۵۸)- تحفة الطلباء و العلماء، ۱٦۵ مخ.

"ما به هره ورځ له خپل استاذ څخه دوولس درسه په تفصیل سره اخیستل چي له هغو څخه مهم یې دادي: دوه درسه د "الوسیط" له کتابه، یو درس د "المهـذب" له کتابه، یو درس د "صحیح مسلم" له کتابه، یو درس د ابن جني د"اللمع" له کتابه، یو د ابن السکیت د "اصطلاح منطق" درس، یو د صرف درس، یو د اصول فقه درس، یو درس د اسماء الرجال او یو درس به مي د اصول دین په اړه ځني اخیستی.

او همدا راز یې فرمایلي دي:

که به یو عبارت راته ستونزمن وو یا به راته څرګند نه وو، نو کتاب به مي ښه وایه، څو عبارت راته واضح سي او د دې لپاره چي د کتاب په متن پوه سم، د کتاب پر شاوخوا به مي حاشیې لیکلې. له دې امله لوی څښتن زما په وخت کي برکت ایښی وو"[۵۹].

۱۵. حافظ ابن حجر عسقلاني رحمة الله علیه د شمس الدین اصفهاني رحمة الله علیه په اړه لیکلي دي:

" ده به له دې ویري لږ ډوډۍ خوړل، چي په ډېروخوړلو سره د طبیعي غوښتني اړتیا پیدا کیږي او تشناب ته په تلو سره وخت ضایع کیږي"[٦٠].

۱۶. د عمر ثعلب رحمة الله علیه عمر یو نوي کالو ته رسېدلی وو. یوه ورځ د جمعې ترلمانځه وروسته کله چي د خپل کور پر خوا روان وو، پر لاري یې وخت غنیمت وګاڼه د کتاب په مطالعه بوخت سو. په دې وخت کي ناڅاپه یو آس په ډېره تېزي را روان وو. عمر ثعلب رحمة الله علیه په مطالعه داسي بوخت وو، چي نه یې آس ولیدی او نه یې د هغه د حرکت ږغ واورېدی. پای آس

---

(۵۹)- همت بلند دار، ۵۸مخ.

(٦٠)- درر کا منه، ٦/ ۸۵ مخ.

د عمر سره ټکر وکړ چي په پایله کي عمرد ډېري کمزورۍ له امله بې سده سو. خلکو هغه پورته کړ او کور ته یې وروستی. خو څنګه چي نوموړی د ډېر عمر وو له دې امله یې له دې فاني نړۍ څخه ستر ګي پټي کړې. (٦١).

۱۷. امام ابو الوفاء علي بن عقیل حنبلي رحمة الله علیه فرمایي:

" که مي چیري ژبه د علم له مذاکرې او ستر ګي مي له مطالعې څخه ولویږي، بیا هم د خپل عمر یوه شېبه بې کاره نه تېروم. او که چیري پر ځای پرېوتم، بیا هم د خپل فکر او خیال څخه کار اخلم" (٦٢).

۱۸. په یوه روایت کي راغلي دي چي یو وخت څو تنه د امام کرخي رحمة الله علیه سره کښېني. کله چي هغوی مجلس اوږد کړي او تر ډېره پوري کښېني، نو کرخي هغو ته ووایي:

د شمسي نظام ملایکه نه ستړې کیږي. د لمر ګرځېدل اوس هم دوام لري او وخت تیریږي. تاسي کله د ولاړېدو اراده لرئ؟

۱۹. عثمان باقلاني رحمة الله علیه به تل په ذکر کولو باندي بوخت وو. هغه فرمایلي دي:

" څنګه چي د ډوډۍ خوړلو پر مهال ذکر نه کیږي، له دې امله کله چي ډوډۍ خورم داسي احساس کوم، لکه روح چي مي له بدنه وځي".

۲۰. د " عیون الانباء" نومي کتاب مولف په خپل کتاب کي د امام رازي رحمة الله علیه په اړه لیکلي دي:

په خدای مي دي قسم وي، چي د ډوډۍ خوړلو پر مهال د علمي بوختیاوو د پرېښوولو له امله ډېر خواشینی کېږم. ځکه وخت ډېره

---

(٦١)- متاع وقت اور کاروان علم، ۹۴مخ.

(٦٢)- همت بلند دار، ٥٦ مخ. د اعلام النبلاء، ۱۹ / ۵۱-۴۴۳ مخونو په حواله.

ګرانه شتمني ده.[٦٣].

۲۱. د نحوي د علم نامتو عالم امام خليل بن احمد رحمة الله عليه فرمايلي دي:

هغه ساعتونه پر ما باندي ډېر سخت تيريږي، چي زه خواړه پکښي خورم.[٦۴].

۲۲. ويل کيږي چي شهيد امام حسن البنا رحمة الله عليه ته وويل سوه: "ته څه وخت ويدېږې؟". هغه ورته وويل: "دعوت او مسؤوليتونه دومره ډېر سوي دي چي خوب ته مي لږ وخت ټاکلی دی او اوس زما مسؤوليتونه تر وخت ډېر سوي دي"[٦۵].

۲۳. د افغانستان ستر او بې ډاره مجاهد مېړه علامه سيد جمال الدين افغاني رحمة الله عليه ټول عمر له وطن څخه ليري په بېلو بېلو هيوادونو کي د اسلام د ساتني، ننګي او پرمختيا لپاره په سر ښندونکو هلو ځلو کي تېر سوی او د دې موخې (مقصد) لپاره يې خپل ځان داسي وقف کړی وو چي ځاني او کورني ژوند ته يې هيڅ ارزښت نه ورکاوه، لکه چي ده ټول عمر واده و نه کړ او د کورنيو ستونزو څخه په آزادي کي يې د اسلامي ټولني د مقاصدو د تر سره کېدو لپاره کار کاوه.

هغه يوه داسي ستره کړنلاره جوړه کړې او په مخکي ايښې وه چي د هغې د تر سره کولو لپاره ټول عمر په هلو ځلو بوخت وو. هغه خپل ټول وخت او عمر د اسلام او مسلمانانو د سرلوړۍ لپاره پر فکر کولو، هلو ځلو، ليکلو او له يوه هيواد څخه بل هيواد ته په تلو راتلو، د ښکېلاکي ځواکونو سره پر ډغري وهلو ، په له منځه تلونکو ولسونو کي د سياسي ويښتيا، د ټولنيزو ګټو احساس او له پر مختګ سره

---

(٦٣)- عيون الانباء، ۳۴/۲ مخ.

(٦۴)- قيمة الزمن عند العلماء،۲۸ مخ.

(٦۵)- جوانان و آينده افغانستان، ۴۲مخ.

د ميني په وينولو، د ژوندانه د اسلامي نظريې په بيا رغښت او نوي کولو کي تېر کړ، چي له امله يې د اسلامي نړۍ د نوي پېر بنسټ اېښودونکی جوت سو.(٦٦).

۲۴. ښاغلی محمد هارون خپل د "آفريده های مهجور علامه حبيبي" په نامه د لوی ښوواند علامه پوهاند عبدالحی حبيبي رحمة الله عليه د مقالو په ټولګه کي ليکي: " استاد علامه حبيبي د خپل ژوند يوه دقيقه هم بې له مطالعې، څېړني، ليکولو او شعر ويلو نه تېرول".

ښاغلی هارون د دغي ټولګي په بله برخه کي ليکی: "د تاليف او ليکلو سره د علامه حبيبي د پرله پسې هلو ځلو او ميني کچه دومره زياته وه چي سره د دې چي د ده د معالجو ډاکټرانو د ټينګو توصيو سره سره يې له مطالعې او ليکلو څخه لاس نه اخيست او د فاضل او درانه استاد اکادميسن پوهاند عبدالشکور رشاد رحمة الله عليه په قول ده تر خپلي مړيني لس ساعته دمخه يو شعر له عربي څخه په فارسي وژباړه"(٦٧).

زما پلار د ده په هکله وايي: "اروانښاد حبيبي چي به کله پر يوه موضوع څېړنه کوله او ستړی به سو ، نو داسي تفريح يې نه کول چي وخت يې ضايع سي، بلکي بل ميز ته به کښېنوست او د بل څه آسان کار په کولو به يې دمه وکړه".

په دې توګه علامه حبيبي دغومره علمي او څېړنيز آثار وليکل چي کله يې د ده د کورنۍ د غړو او دوستانو په غوښتنه يو پر بل سربېره کښېښوول، نو جګوالی يې د ده د دنګي وني سره برابر سو.

۲۵. حضرت مولانا محمد زکريا رحمة الله عليه د ځان په اړه

---

(٦٦)- رزاقي، شاهد حسين. سيد جمال الدين افغاني اند او ژوند، ۲۸ او ۴۴ مخونه.

(٦٧)- خپل، م. هارون.آفريده های مهجور علامه حبيبي، کابل:اکادمي علوم ج.ا. ۱۳۶۷ کال.

فرمايلي دي:

"زياتره وختونه به په يوه شواروز کي تر دوه نيمو، درو ساعتو زيات خوب نه را په نصيب کېدی. مبالغه نه کوم زياتره وختونه به داسي هم راباندي تېرېدل چي ډوډۍ به مي هېره وه. کله چي به مي مازيګر د کمزورۍ احساس وکړ نو هغه وخت به مي ډوډۍ را په ياد سوه"(٦٨).

۲۶. په " تذکرة الرشيد " کي راغلي دي چي حضرت مولانا رشيد احمد ګنګوهي رحمة الله عليه څلور کاله په ډيلي کي زده کړه وکړه. خو ده په دې څلورو کلونو کي په بېلو بېلو علومو کي داسي مهارت تر لاسه کړ، چي د هغه مخالفينو لا د هغه پر پوهه باندي له اعتراف کولو پرته بله چاره نه درلوده. که څه هم هغه ډېر ښه استعداد درلود، خو بيا هم هغه د وخت په اړه دونه حريص وو چي له خوړلو، لمونځونو او ډېر لږ ارام کولو پرته يې خپل ټول وخت په درس، مطالعه او څېړنه او د پېچلو مسايلو په حلولو کي تېراوه.

۲۷. علامه شبلي نعماني رحمة الله عليه په خپل يوه کتاب کي ليکلي دي: " زه د يوه انګريزي عالم سره چي آرنولډ نومېدی د مسافر وړلو په بېړۍ کي سپور وم. يو وخت چي له خوبه راپورته سوم، يوه مسافر راته وويل: د بېړۍ انجن(ماشين) مات سوی دی. ما وليدل چي په رشتيا سره هم له دې امله ټول خلک خوابدي دي او د بېړۍ حالت خراب دی. بېړۍ د باد په واسطه کرار کرار حرکت کاوه. د دې په ليدو زه هم ووېرېدم او په زړه کي مي ډول ډول فکرونه راګرځېدل. زه آرنولډ ته ورغلم. که ګورم چي هغه په ډېره سړه سينه په ډېر ډاډمن زړه سره کتاب مطالعه کوي. ما ورته وويل: ته نه وينې چي څه پېښه ده؟ هغه راته وويل: هو، د بېړۍ انجن له کاره لوېدلی دی. ما ورته وويل: هو،

---

(٦٨)- متاع وقت اور کاروان علم، ۳۵ مخ.

خو دا وخت د کتاب ویلو دی؟ هغه راته وویل: که چیري بېړۍ له منځه ولاړه سي، نو دا لږ وخت هم ډېر ارزښت لري ولي یې همداسي ضایع کړم؟ د هغه د ځواب په اورېدو زه بیر ته عادي حالت ته راوګرځېدم او تر اتو ساعتونو وروسته انجن بیر ته جوړ سو. (٦٩).

۲۸. دوخت د قدر په اړه د پورتنیو عالمانو د ژوند لیکونو په مطالعه کولو سره ، ماته خپل ګران پلار جان چي زما د ژوند لومړی ښوونکی هم دی استاذ عبدلمالک همت را په یاد سي. محترم استاذ د خپل ژوند ډېري شېبې په مطالعه، د کتابونو په لیکلو ، ژباړلو ، د قرآن مجید په تفسیرولو، د نورو د کتابونو په تصحیح کولو، مقالې لیکلو او علمي بوختیاوو تېري کړي دي او اوس هم له خوړو ، خبرونو اورېدلو او اړینو کارونو پرته نور ټول وخت په دغو چارو بوخت وي. استاذ نه د شپې یا د ورځي بانډارونه خوښوي او نه په غونډو کي ګډون کوي او د پردو غلیمانو او غلیم پالو سیاستوالو او د هغو له نورو چوپړیانو څخه یې ډېر بد راځي. ده د لیکنو له لاري د اسلام، هیواد او هیوادوالو له ګټو څخه ننګه کول او چوپړ خپله موخه ټاکلې ده او ځان یې دې کار ته داسي وقف کړی دی چي تقریباً ټول وخت یې دې چارو ته ځانګړی کړی دی او وایي چي ماته وخت پر دغو چارو لګول تر بلي هري مادي ګټي غوره باله سي.

## وخت وایي:

وخت تاسي ته د ځان په اړه څو خبري کوي.

۱. د نړۍ ټولي کارنامې زما په غېږ کي تر سره سوي دي. زه هم د جنت بڼ یم او هم د دوږخ کنده.

۲. زه د توري په شان یم ، تاسي ما غوڅ کړئ (په یوه کار مي اخته

---

(٦٩)- تحفة الطلباءو العلماء،۱۷۳ مخ. د نظر و فکر مجلي د " نام آوران علی ګړ" مضمون ،۲۲ / ۴ مخ په حواله.

کړئ)، که نه زه به تاسي (د وزګارۍ په حالت کي) له منځه یوسم.

۳. زه د تېرو سوو وختونو یو سیند یم.که مو ګټه را څخه واخیسته خو ښه، که نه هیڅوک زما د څپو مخه نه سي نیولای.

۴. زما د پښو ږغ څوک نه سي اورېدلای، په داسي حال کي چي زه تل د تلو په حال کي یم.

۵. زه د سرو غوندي یم، نو زما ساتلو ته په ډېره ښه توګه پام وکړئ او ورڅخه راڅخه واخلئ.

٦. زه ستاسي ژوند یم. ما مه بربادوئ. بلکي ګټه را څخه واخلئ.

۷. ما غنیمت وګڼئ.که زه یو ځل ولاړ سم، بیا هیڅکله نه راګرځم.

۸. زما څخه ګټه اخیستونکي لوړي پوړۍ ته رسېدلي دي. او چا چي زه ضایع کړی یم، هغو خپل ژوند ضایع کړی دی.

۹. زما پر تېرېدو باندي پښېماني او افسوس بې ګټې کار دی. هر څه چي کول غواړئ، همدا اوس یې وکړئ.

۱۰. که د خپل ژوند سره مینه لرئ، نو زما قدر وکړئ.

۱۱. زه ستاسي د شتمنۍ په شان یم. ما هرځای پر هر کار مه مصرفوئ.

۱۲. زما څخه همدا نن کار واخلئ، ځکه سبا د شیطان مقوله ده.

۱۳. زه د لوی څښتن امانت یم، زما ضایع کول د ګناه لامل ګرځي.

۱۴. زه ستاسي پانګه او شتمنۍ یم، ما پر ګټه واچوئ او له ضایع کېدو څخه مي وژغورئ.

۱۵. په نړۍ کي چي هر شی له منځه ولاړ سي، بیرته پیدا کیږي. ولي زه که له منځه ولاړ سم، بیا نه پیدا کېږم.

۱٦. که غواړئ چي خپل برخلیک ته بدلون ورکړئ، نو زما څخه ګټه واخلئ.

۱۷. تر ټولو ارزښتناک شی چي په خپل اختیار کي لرئ ، هغه

زه يم.

۱۸. زما څخه د نړۍ تر ټولو غوره امت ګټه اخيستې ده. نو که غواړئ چې تاسي هم د نړۍ د پر مختللی امت برخه سئ، ماله لاسه مه ور کوئ.

۱۹. چا چي زما څخه ګټه اخيستې ده، د هغو نومونه په سلګونو پاڼو کي ثبت سوي دي. که غواړئ تاسي هم د هغو په شان سئ، نو زما هره شېبه په کار واچوئ.

۲۰. زما په اړه ستاسي څخه پوښتنه کيږي. مخکي له دې چي پښېمانه سئ او حسرت وکړئ، زما د استعمال په طريقه ځان پوه کړئ.

۲۱. زما بې ځايه تېرول او ضايع کول د لوی څښتن سبحانه د قهر او غضب لامل ګرځي.

۲۲. کوم امت چي زه ضايع کړی يم، هغوی څو پېړۍ وروسته پاتـه سوي دي. نو که غواړئ چي وړاندي ولاړ سئ او برياليتوبونه تر لاسه کړئ، زما څخه ګټه واخلئ.

۲۳. زما پر ضايع کېدو باندي دښمن پر تاسي باندي ولکه پيدا کوي. نو د دې لپاره چي تاسي پر دښمن غښتلي سئ، زما اهميت وپېژنئ.

۲۴. که غواړئ چي عزت او شرف تر لاسه کړئ او پر نورو حکومت وکړئ، نو زما په ارزښت ځان پوه کړئ.

۲۵. ډېر لږ عمرونه زما څخه د ګټي اخيستو په صورت کي د لوړتيا پړاو ته رسېدلي دي. او ډېر اوږده عمرونه زما څخه د بې پروايي په سبب ناکامه او وروسته پاتـه سوي دي.

۲٦. د قيامت په ورځ ستاسي څخه زما په اړه پوښتنه کيږي، نو مخکي له دې چي پښېمانه سئ، زما څخه سمه ګټه واخلئ.

۲۷. زه ستاسي د پانګي او شتمنۍ په شان يم. اما تاسي خپله مادي شتمنۍ ذخيره کولای سئ. په داسي حال کي چي زما ذخيره کول ناشونی کار دی.

۲۸. زه ستاسي لپاره ډېر لنډ او محدود يم، نو ما په بې معنا کارونو مه بوختوئ.

۲۹. په نړۍ کې هر ارزښتناک شی یوه بیه لري، خو زما لپاره تر اوسه پوري بیه نه ده ایښول سوې.

۳۰. زه چې در څخه تېر سوم، بیانه راګرځم او د راتلونکي په اړه فکر مه کوئ، اوس چې ستاسي په اختیار کې یم اوس ګټه را څخه واخلئ.

۳۱. د نړۍ مجرمین زما څخه د بې پروایۍ په صورت کې رامنځته سوي دي.

۳۲. د بریالیتوب لومړۍ زینه زما د قدر څخه پیلیږي.

۳۳. د دین او دنیا ډېر ستر عالمان او ساینس پوهان زما څخه د سمي ګټې اخیستو له امله لوړو پوړیو ته رسېدلي دي، نو ته هم زما څخه دهغو په شان ګټه واخله.

۳۴. زه تل په خوځښت کې یم. تمېده نه پېژنم ، نو ته هم زما د خوځښت سره سم خوځه، وایي:"در مع الدهر کیف ما دار" (څنګه چې مهال خوځي، ته هم هغسي ورسره خوځه).

شعر:

د مهال د خوځېدو سره سم خوځه
هسي نه چې ته ولاړ یې دی روان
مهال هیڅ نه بوډا کیږي نه مړ کیږي
ټول به ومري، خو مهال به وي لا ځوان
چې مهال هر څو تېریږي لا ځوانیږي
نوی، نوي ګلان سپړي په بوستان
مهال هیڅ نه دی اېل سوی د واکمنو
بلکي دوی یې دي غوښتنو ته ناتوان
ته هم پاڅه د مهاله سره مل سه
کړه روان د پر مختللي ژوند کاروان.

﴿رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا ۖ إِنَّكَ أَنتَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ﴾

# اخیستلیک


١. قرآن کریم ﴿تَنْزِيْلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾.

## الف: د احادیثو کتابونه

٢. ابن حنبل، امام ابو عبد الله احمد بن محمد. مسند احمد، ریاض: مؤسسة الرسالة، لومړی چاپ،١۴٢١هـ. کال.

٣. ابن ماجة، ابو عبد الله محمد بن یزید. سنن ابن ماجه، مصر: شرکة مکتبة ومطبعة مصطفی البابي الحلبي، د خپرېدو کال يې نه دی معلوم.

۴. بخاري، امام ابي عبدالله محمد بن اسماعیل. صحیح البخاري، بیروت: دار المعرفة،٢٠٠۴ع. کال.

۵. ترمذي، محمد بن عیسی. سنن الترمذي، مصر: شرکة مکتبة ومطبعة مصطفی البابي الحلبي، دوهم چاپ، ١٣٩۵هـ. کال.

٦. سجستاني، ابو داود سلیمان بن الاشعث. سنن ابي داود، بیروت: المکتبة العصریة، د خپرېدو کال يې نه دی معلوم.

٧. مدني، امام مالک بن انس. الموطأ، ابو ظبي: مؤسسة زاید بن سلطان آل نهیان للاعمال الخیریة والانسانیة، لومړی چاپ، ١۴٢۵هـ. کال.

٨. مسلم، امام ابوالحسین. صحیح مسلم، بیروت: دار الفکر، ٢٠٠٠ع. کال.

## ب : بېلابېل مأخذونه

۹. ابن خلکان، احمدبن محمد ابي بکر. وفيات الاعيان و انباء ابناء الزمان ، بيروت: منشورات الشريف، ۱۳۶۴ل. کال.

۱۰. ابو غدة، عبدالفتاح. قيمة الزمن عند العلماء، مکتب المطبعات الاسلاميه، د چاپ کال معلوم نه دی.

۱۱. پالنپوري، محمد عرفان. تحفة الطلباءو العلماء. ترجمه ملازهي، ابو حامد عبيد الله. نشرنګين کوير، ۱۳۹۰ل. کال.

۱۲. حقاني، عبدالباقي. د اسلامي حاکمانو اخلاق او صفات، پېښور: المکتبة الحقانية لعلوم السياسة الشرعية، ۱۳۹۱ل. کال.

۱۳. خالد، عمرو. دريغ از اين مسلمانی؟! ژباړن، حسامی، محمد عزيز. انتشارات مستقبل، د چاپ کال معلوم نه دی.

۱۴. خپل، هارون. آفريده های مهجور علامه حبيبي، کابل: اکادمی علوم افغانستان، ۱۳۶۷ل. کال.

۱۵. ذهبي، امام شمس الدين محمد بن احمد بن عثمان. سير اعلام النبلاء، بيروت: مؤسسة الرسالة، ۱۹۸۵م. کال.

۱٦. ذهبي، شمس الدين. تذکرة الحفاظ، بيروت: دار احياء التراث العربي، د خپرېدو کال يې نه دی معلوم.

۱۷. رزاقي، شاهد حسين. سيد جمال الدين افغاني اند او ژوند. ژباړن عبدالمالک همت، کابل: مستقبل خپرندويه ټولنه، ۱۳۸۸ل. کال.

۱۸. زرنوجي، برهان الدين. هيتهوروي، صديق احمد. دوې ملغلري، د تعلم المتعلم و آداب المتعلم ژباړه ، شرر. جلال الرحمان. کوټه: مکتبه القرائة و التجويد، د خپرېدو کال يې نه دی معلوم.

۱۹. زمخشری. ژباړن، سراوانی، عبدالقادر. پرتوی از کلام

امیر المومنین عمر،زاهدان انتشارات صدیقی،۱۳۸۵ل. کال.

۲۰. سبحاني، رحمت الله. مخزن اخلاق، کتب خانه حمیدیه گرهیا اسټریټ دهلي، د چاپ کال معلوم نه دی.

۲۱. سرحدي، ابو سجاد صدیق احمد. مثالي شاګرد، کراچي: مکتبه حمادیه، ۱۴۲۸هـ. کال.

۲۲. سعید افغاني، محمدسعید.د نجات او کامیابي لار د علم او فلسفې له نظره،آریانا مطبعه،۱۳۷۰ل. کال.

۲۳. سیوهاروی،حفظ الرحمن. اخلاق اور فلسفه اخلاق، لاهور: خالد مقبول پبلشرز،۱۹۷٦م. کال.

۲۴. شرواني، حبیب الرحمن.شیفتگان علم و دانش، ژباړه: خاشي، ابو الحسین عبدالمجید مرادزهي. انتشارات فاروق اعظم، ۱۳۸۲ل. کال.

۲۵. شریف، موسی. همت بلند دار... ژباړن ، صفرزهی ، عبدالرحیم.آوای اسلام،۱۳۸۷ل. کال.

۲٦. عباسي، ابن الحسن. متاع وقت اور کاروان علم، کراچي: مکتبه عمرفاروق،۱۴۲۷هـ. کال.

۲۷. عبدالمجید، محمد حنیف. مثالي استاذ ، لومړی او دوهم ټوک، کراچي: بیت العلم ټرسټ، ۲۰۰٦ع. کال.

۲۸. غزالي، محمد. اخلاق مسلمان، ژباړن: حکیمي، مومن. جمعیت اصلاح و انکشاف اجتماعی،۱۳۸۵ل. کال.

۲۹. قرضاوي، یوسف.د مسلمان په ژوند کي د وخت ارزښت، ژباړه: شفیق، عبدالناصر. کابل:د النور تعلیمي اداره، ۱۹۹۸م. کال.

۳۰. قرنی، عائض. لا تحزن، ژباړن، ندوی، غطریف شهباز. لاهور: مکتبه خلیل،۲۰۰۹م. کال.

۳۱. قرنی،عائض بن عبدالله. نا امید مشو، ژباړن: ابراهیمي، محمد. انتشارات ایلاف،۱۳۹۲ل. کال.

۳۲. قرنی، عوض بن محمد. د بریالیتوب لار،ژباړن، امین، شفیق الله. کابل: جمعیت اصلاح د فرهنګي او نشراتو څانګه، ۱۳۸۷ل. کال.

۳۳. ندوي، ابو الحسن. انورات،لاهور: مکتبة الحسن،د چاپ کال معلوم نه دی.

۳۴. وردګ، عبدالحمید. د حضرت عمر بن عبدالعزیزعدالتي تګلاره،د خیبرخپرندویه اداره،۱۳۸۹ل. کال.

۳۵. هلباوي، کمال. ژباړونکی،حکمي، عبدالشکور. جوانان و آیندهٔ افغانستان،خپروونکی: مرکز فرهنګي اسلامي افغانستان، ۱۳۷۲ل. کال.

۳٦. همت، عبدالکالک. د مقالې لیکلو اصول، کابل: صحاف نشراتي موسسه، ۲۰۱۰ع. کال.



## د ليکوالي لنډه پېژندنه

**ډېوه همت لور**

✳ د پلار نوم يې عبدالمالک همت.
✳ د هلمند ولايت په مرکز لښکرګاه ښار کې زېږېدلې ده.
✳ د کندهار ښار د زرغونې انا د ليسې له دوولسم ټولګي څخه په ۱۳۸۸ل. کال فارغه سوه.
✳ په همدغه کال د کانکور په ازموينه کې د کابل پوهنتون د پښتو ادبياتو پوهنځي ته کامیابه سوه، خو هلته يې د لوړو زده ترلاسه کولو ته زړه ښه نه کړ.
✳ په همدغه کال يې په کابل کې د سلام پوهنتون د شرعياتو پوهنځي د اسلامي ښوونو په څانګه کې د لوړو زده کړو د ترلاسه کولو لپاره د کانکور ازموينه ورکړه او په ۱۳۹۲ کال يې له نوموړي پوهنتون څخه د ليسانس سند ترلاسه کړ.
✳ په ۱۳۹۶ لمريز کال يې د کابل پوهنتون د شرعياتو په پوهنځي کې په تفسير او حديث کې د ماسټرۍ دوره پای ته ورسول.
✳ د ۱۳۹۲ کال را په دې خوا په کابل کې د افغان پوهنتون د نجونو د برخې د استاذۍ دنده پرمخ بيايي.
✳ تر اوسه يې دغه آثار ليکلي دي :

۱. خوندوري کيسې (دکوچنيانو د کيسو ټولګه ) په ۱۳۸٦ل. کال خپره سوې ده .
۲. په اسلامي علم او ادب پسوللي ښځي په ۱۳۸۹ل .کال خپور سوی دی.
۳. د دعوت اصول او آداب (ژباړه) په ۱۳۸۹ل. کال خپره سوې ده .
۴. زما ژوند له کفر څخه تر اسلام پوري ۱۳۸۹ل. کال خپور سوی دی.
۵. د کوچنيانو لپاره عبرتناکي قرآن کيسې په ۱۳۹۰ کال خپور سوی دی.
٦. وخت لکه سره زر، دغه ستاسي په لاس کي کتاب دی.
۷. د کوچنيانو د لنډو کيسو دوولس بېل بېل کتابګوټي، (ناچاپ).
۸. په اسلام کي د ښځي حقوق نوي که زاړه؟ (ژباړه)، (ناچاپ).
۹. زما د احساساتو انځور، ادبي ټوټې (ناچاپ).
۱۰. د علم د تر لاسه کولو لارښود (ناچاپ).
۱۱. د استاد او شاګرد حقوق (ناچاپ).
۱۲. د ادبي صنايعو قرآني بېلګي(ناچاپ).
۱۳. په زړه پوري کيسې (ناچاپ) .
۱۴. پښتو نثر پېژندنه (ناچاپ).

## د کتاب له منځ څخه

د پښتنو متل دی، وايي:" وخت لکه سره زر". يا وايي: "وخت سره زر دي". په عربي کي وايي:"الوقت من ذهب". (وخت هم سره زر دي). انګرېزان وايي:" Time is Money " (وخت پيسې، شته، زر دي). ځينو علماى کرامو پر "الوقت من ذهب"باندي اعتراضونه او نيوکي کړي دي ، وايي دا د انګرېزانو او لوېديځوالو متل دی. څنګه چي دوی مادي پال دي او زر دوی ته هر څه دي، نو وخت د زرو غوندي ګڼي. خو موږ مسلمانان وايو چي وخت تر سرو زرو هم قېمتي او ارزښتمن دی، ځکه وخت ته هيڅ بيه نه سي ايښوول کېداى . او وايي چي د مسلمانانو په نزد وخت ګرد سره ژوند دی.

زما په اند دا سمه خبره ده چي وخت تر زرو ډېر ارزښت لري، ځکه لکه دوی رحمهم الله چي فرمايي سره زر په پيسو رانيول کيږي او په بازار کي پلورل کيږي، خو وخت نه خرڅيږي او نه رانيول کيږي.

اما تر کومه ځايه چي زموږ پښتنو د متل په اړه زه پوهېږم د دغه متل مطلب دانه دی چي ګواکي وخت د سرو زرو په کچه دی.

زموږ ټول متلونه د دغه متل په شمول زموږ د اولنو غوره، ارزښتناکي او تللي او پخې، زريني او د مرغلرو غوندي ويناوي دي، چي لوی او غوره مقاصد پکښې نغښتي دي.

د دې متل موخه او معنا داده چي وخت د انسان پانګه او ارزښتناک شته باله سي. نو لکه چي انسان خپلو تر ټولو ښو او ارزښتناکو شتو ته زښته زياته پاملرنه کوي، په تېره په هغو کي سره زر ډېر ښه ساتي او حفاظت يې کوي او پام ورته کوي ، وخت ته هم بايد دغسي ټينګ پام وسي او په تپاک او احتياط سره وساتل سي، په پوهه او تدبير سره ګټه ځني واخيستل سي او د بې ځايه استعمال او د ضايع کېدو مخه يې ونيوله سي او لکه انسان چي خپله پانګه په ښو او ګټورو چارو کي په کار اچوي او پر ښو لارو يې لګوي، همدغسي وخت هم په کار واچوي او ويې لګوي.